ونوپاڼي په ژېړ، نارنجي، سور نارنجي اوقهويي رنګونه لېدل کېږي، دوی دې  د طبيعت د رنګونو د څرنګوالي په اړه وپوهوي اوهم دې له دوی څخه  وغواړي، چې په خپلوتقاشيو کې له غير واقعي رنګونو څخه هم ګټه واخلي. خپل ذهني انځورونه په ذهني ډول رنګ کړي اوپه دې وسيله د د وی خلاقيت وروزي. په مختلفولوستونوکې که تقاشي ذهني او ياد  اصل له مخې وي، د وی دې  له ذهني رنګونوڅخه ګټې اخيستنې  ته چې د د وی ځانګړی احساس بيانوي آزاد  پرېږدي.

**اوبدنې يا جوړښتونه**: بېلا بيلې پديدې سربېره پررنګ اوبدنې هم لري. په مناسبه روښنايي يا نورکې د بېلابېلو رنګونوتوپير پر بصري حس  درک کولی شو او د هر رنګ ليدل په موږ کې ځانګړی احساس راپاروي. د اوبدنې يا بافت پيژندنه سربېره په بصري حس د لمس کولو حس ته هم اړتيالرو. موږ اوتاسې د ماشومتوب له د ورې څخه د مختلفوپديدو لمس کول، لکه: زيږه، نرم، هواراولطيف تجربه کړيدي او د هغو ځانګړتياوې موخپل خيال ته سپارلي دي. له دې  امله کولی شوچې اوبدنې وپېژنوچې کومې هوارې او کومې زيږې دي، ځکه نو زموږد ليدنې حس زموږ سره مرسته کوي، ترڅود اوبدنو بېلابېل ډولونه وپېژنو او بيا يې د لمسي حس په واسطه خپله پيژندنه بشپړه کړو.

مختلفې اوبدنې موږ په خپله شاوخوا کې تجربه کوو، دا پر دوو ډلوويشل کېږي، طبيعي اوبدنې اومصنوعي اوبدنې، زموږ په چاپيريال کې ډېرې زياتې اوبدنې ليدل کېږي. په طبيعت کې انسانانو د مصنوعي اوبدنو د جوړېد ولپاره له طبيعي اوبدنوڅخه الهام اخيستی دی. اوبدنې د کيفيت له نظره په د وو ډلووېشل کېږي. هوارې اوبدنې يوازې د ليدلوپه واسطه په مناسبه روښنايي کې د پيژندلو وړ دي.  بصري اوبدنې او ځينې اوبدنې چې لوړې اوژورې لري. سربېره  پر ليدلو د لمسي حس په واسطه هم پېژندل کېدلای شي.

په طبيعت کې بېلا بېلې هوارې اوبدنې  په بېلابيلو رنګونو شتون لري چې د مختلفورنګونودرلود ونکې دي لکه ملغلرې، د ګلانوپاڼې هوارې ډېرې، د  د لفين د بد ن پوستکی، پنګو او انسان. ځينې طبيعي اوبدنې سربېره په بصري ارزښت لامسه يې ارزښت هم لري، لکه: د ونو د  تنې پوستکي، د مېږو وړی، د کشپ د شاډېره، د کب د بد ن پوستکی د مارپوستکی، د خربوزې او اناناس پوستکي انسانانو په مختلفواوبد نوکې چې په خپل لاس يې جوړې کړيدي،  له طبيعت څخه الهام اخيستی دی. د مثال په توګه بصري اوبدنې درخت په ټوټوکې په بېلابېلوطرحوخال لرونکي، راهدار،څلورخانه يې کې ليدل کېږي.

بصري، لامسي اوبدنې په زيږو او پنډوټوټو، لکه: مصنوعي څرمنې، قالينې، بوجی، مخ پټوونکی، پښوپټوونکی د ديوال سطح، پوزی، ګل لرونکي شيشه، کاشي اوسراميک په برجسته ډيزاينونو ښکلي کېږي.

د بصری – لامسيي اوبدنو د جوړېدو لپاره له مختلفو لارو، لکه: د رنګ شيندل، رنګ مالي، تورېل، غوڅول يا څورول  قالب جوړول او مهرولو څخه ګټه اخيستل کېږي.

هنرمندانوپه کاشي کاري، خښتوکارولو، په فلز باندې  د قلم وهلو، په لرګي کې شبکه جوړونه، ختمه ياډېره، په ګچ اولرګي کې کيندنې، په لاس ګنډل شوي شيان، لکه: ګل ګنډياسکويي، ټغراوبد نه، قالين اوبدنه، د لاسي صنايعوبېلابېلې څانګې، حسن خط، انځور ګري، هيکل جوړونه اومعماري مختلفې اوښکلې اوبدنې جوړوي. په

زیاترو انځورګریواوحسن خط کې بصري اوبدنې لېدل کېږي، ولې په کند نکاریو، شبکه کیندلو اوقالبونوکې بصري – لاسسي اوبدنې وجود لري.

**تناسبونه**: په اووم ټولګي کې زده کوونکي د طبیعت، تصویرونو له الفباسره بلدشول. په اتم ټولګي کې دعنصرونوترمنځ پراړیکو ټینګار شوی دی. لکه څرنګه چې د الفباتوروله ترکیب څخه کلمې جوړېږي او د کلمو له یوځای کېدوڅخه جملې منځ ته راځي، همدارنګه په طبیعت کې خطونه شکلونه، رنګونه اوجوړښتونه په زیاته اندازه وجودلري چې دطبیعت جملې جوړوي.

یوه ونه چې د تنې، ښاخونو(خطونه ) پاڼواو دهغې دشینوالي (حجمونو) مجموعه ده. ښوونکی کولی شي، له زده کوونکووغواړي چې په یوه الوتونکي، میوه، ګل اوهره بله نمونه کې دطبیعت الفبا وښیي اونوم یې واخلي.

په بل پروګرام کې زده کوونکي دخطونو،شکلونو، رنګونواومختلفو جوړښتونوترمنځ اړیکوته پاملرنه وکړي، د اندازې اوشکل ترمنځ اړیکه پر تناسبونوپورې اړه لري، هریوزده کوونکی دې د خپلې خوښې ځاروي وټاکي او دځاروي د بدن د بېلابېلو برخو د اندازو اوشکلونو د تناسبونو په هکله دې پخپلوکې سره وغږېږي. په ترتیب سره دې زده کوونکي د مختلفوځارویو په هکله سره وغږېږي.د اندازواوشکلونوترمنځ پرتناسب سربېره هره طبیعي پدیده تناسب اوښکلالري. له زده کوونکووغواړئ چې په طبیعي بېلابېلو ښکارندو (پدیدو)کې، لکه: مېوو، سابو او ګلونو ترمنځ تناسبونو ته پاملرنه وکړي، کومې حیرانوونکي نمونې چې پیدا کړي، نورو ټولګیوالو ته دې یې هم بیان کړي او که امکان لري نمونې دې یې هم وروښیي.

د جوړښتونو او تناسبونو د بیان لپاره ډیرښه مثال کیشپ او یا د هغه تصویر دی. د کیشپ بدن ښکلی اوحیرانوونکی دی. دا جوړښتونه د تناسب اړیکه جوړوي او د ځیرنې وړدي. دکیشپ دورمېږ د لاندنۍ برخې جوړښتونه د لاسو له جوړښتوسره وصل دي، چې د دواړوڅرنګوالی د کیشپ او د هغه له تیرې سره هم غږي لري. زده کوونکي دې هغه مناسبه نمونه چې لاس کې یې لري، روښانه کړي اوخبرې دې پرې وکړي. د طبیعي بېلابېلونمونوپیداکول، دخطونو ترمنځ تناسبونه، شکلونه، رنګونه جوړښتونه باید زده کوونکوته بیان کړو او دوی طبیعت لټونې ته وهڅوو او د طبیعت دکتاب لوستلوته یې وهڅوي.

**لرې اونږدې**: په هنرکې دایومطرح بحث دی، چې موجودات اوپدیدې په فضاکې څه ډول ښکاري، د انسان سترګې د فاصلې په دلیل هغه څه چې لري، واقع دي، کوچني اوکم رنګه لیدل کېږي، دې مفهوم ته د(سترګوخطایي) وایي، ځکه چې په حقیقت کې نه پدیدې وړوکې شوي او نه یې هم په روښنانتیا کې کوم تغییرراغلی.په رسامۍ اونقاشۍ کې دلریوالي ښودلو لپاره بېلا بېلې لارې موجودې دي، چې دتاریخ په اوږدوکې په مختلفوتمدنونوکې سرته رسېدلې دي. ماشومان دلرې اونږدې لپاره پر زړه پورې لارې منځ ته راوړي اوفضا په غیرواقعي ډول په خپلو انځورونوکې ښیي. دوخت په تېرېدوسره چې زده کوونکي لویېږي، د ودانیو او پدیدو لریوالي اونږدېوالي ته پاملرنه کوي ،غواړي چې هغه په خپلوانځورونوکې په ښکاره توګه وښیي. ښوونکی کولی شي، چې دوی وهڅوي چې په ځیرسره ورته وګوري او له دوی څخه وغواړي چې هغه څه چې انځوروي، په ډېرغور او دقت یې رسم کړي، ترڅوواقعیت ولري، نژدې والی. ولري. کوچني کول اولویول په موجوداتوکې لرې اونږدې رانښیي.

کـه دوه ښـکلونه یـو مـخ تـه اویـو د هغـې شـاته پرمیزکېـږدو چـې د شاشـکل یوځـه پـټ کـړي، دا یـوه بلـه لاره دپرسپکتیو(لرې اونږدې ) ده. که چېرې ځیني زده کوونکي د دې توان پیداکړي چې هغه څه چې غواړي رسم کـړي، ځانګړي وخت ته اړتیا لري، امکان لري، چې ځیني لـه دوی څخـه د پرسـپکتیو د رسـمولو، پیژنـدلو اوسـرته رسـولو توان ونه لري. ښوونکی باید له ډېروساده لاروڅخه ګټه واخلي. دپرسـپکتیوبله سـاده لاره چې پـه نقاشـۍ کـې کـارول کېږي هغه داده چې هغه څه چې نږدې ښکاري د صفحې په لاندنۍ برخه اوهغه څـه چې لـرې ښـکاري دصـفحې پـه پورتنۍ برخه کې رسم شي. کله کله ماشومان او نوي ځوانان په خپلوانځورونو کې له دې لارې څخه ګټه اخلي.

**ریتم:** ریتم د خطونو،شکلونو، رنګونو، اندازواوجوړښتونوترمنځ اړیکه محکموي. هرډول تکرارچې قاعده اونظـم پکـې وي، ریتم منځ ته راوړي. ریتمونه په دووډلومنظم اوغیرمنظم وېشل کېـږي.کـه دخطونـو، رنګونـو، یادانـدازو د تغییـرد تکرارفاصله یوشان وي منظم او یو نواخت ریتم منځ ته راځي، لکه: د جوارو په دانو، د بوټو پـه اغزیـو او د خربـوزې په زړیوکي دا منظم تکرار دی، چې منظم ریتم یې بولي. که چېرتـه فاصـله دخطونـو، رنګونـو تـرمنځ انـدازې مختلفـو فاصلوکې راټوکېدلي وي، یا د انارو دانې چې په هره برخه کې ځانګړی نظم لري منظم ریتم دي.

له ریتم څخه په نقاشۍ کې په بېلابېلوبرخوکې ګټه اخیستل کېږي دمثـال پـه توګـه زده کـوونکي دمنظـرو د انځورولـو پروخـت کـې هغـه ځـانګړي ریـتم چـې د دو فاصـلو تـرمنځ وجـود لـري، وښـیي اوکوښـښ وکـړي چـې فاصـلې او دونواندازې په پام کې ونیسي اوپه انځورونوکې یې وښيي. په غرنۍ منظره کې چې کورونه په غروکـې جوړشـوي وي، دکورونودانـدازو اوفاصـلوریتم پـه پـام کـې ونیـول شـي، بیـادې انځورشـي، پـه هـره ونـه کـې ځـانګړي تناسـبونه د تنـې د ښاخونوترمنځ وجودلري او ډېرښکلی ریتم منځ ته راوړي. دونې دانځورولوپروخت باید زیاته پاملرنه وشي اوبیارسم شي.
دطبیعت پر نقاشۍ سربېره د ښـکلونوطرحوکې ریتمونـه لیـدل کېـږي. دبېلابېلونمونودکـاپي کولـوپر وخـت دخطونـو، رنګونو،شکلونو او اندازو ریتم ته باید ښه ځیرشواوهغه په ډېرغور انځوراورنګه کړو.

رنګه ریتم په طبیعي موجوداتو کې په زیاته پیمانه لیدل کېږي، لکـه: دغومبسـې پـه بـدن کـې دزیړاوتوررنـګ ریـتم، درنګونوریتم دکب په بدن کې، د لمر ګلي د رنګونو ریتم،په هنري اثاروکې په ځانګړي ډول په زینتي طرحوکې.

درنګونوریتمیک تکرارد دې سبب شوي دي، لکه: د قالینوپه طرحـوکې درنګونـوریتم، ګـل ګنـډ، کاشـي کـاریوچې ټوله سطحه یې په مختلفورنګونوپوښلې ده. د رنګونومنظم تکرارپه منظموفاصلوکې دښکلاسبب کېږي.

د هنرښوونکي کولی شي له زده کوونکوغواړي چې دبېلابېلوطبیعي پدیدوریتمونه وڅېړي اوهم وګوري چې په هـره طبیعي پدیده کې څه ډول ریتمونـه وجـودلري، آیـا پـه انـدازوکې ریتمونـه یـا پـه رنګونـوکې شـکلونه لیـدل کېـږي. زده کوونکي د څېړنو په ترڅ کې په دې ټکي بایـد وپـوهېږي، لکـه: د بڼې او انـدازې لـه مخـې د ودانیـو پـه رنګونـو کـې یوښکلی ریتم را منځته کوي، د طبیعـت د نمونـو د تناسـبونو او ریـتم پیـدا کـول، څېړل اوپلټـل لـه زده کوونکوسـره مرسته کوي چې په کتنوکې پراختیـا ومـومي. دلیـدنوتوان یـې زیـات شـي او درسـامۍ اولاسـي کـارونو پـه مـستقیمو فعالیتونو کې زیات تاثیرلري.

**هنري وسيلې**: د هنرمضمون په هردرسي ساعت کې چې عملي فعاليتونه، لکه: انځور ګري او يا لاسي کارونه سرته رسېږي، ځانګړي سامان اووسيلوته اړتياده. داوسيلې د اووم ټولګي په کتاب کې په درو ډلو اثر پرېښودونکې، اثرمنونکي اوکومکي وسيلې تقسيم شوي دي چې په بېلابېلوهنري فعاليتونوکې کارول کېږي.

د هنر ښوونکی بايد پاملرنه وکړي چې که هغه مواد اووسيلې چې په کتاب کې يې يادونه شوي ده، په لاس کې نه وي کولی شي چې ورته وسيلې يې ځاي ونيسي او فعاليت پرې سرته ورسوي. دوسيلونشتوالی د دې دليل نشي کيدای چې له فعاليتونوڅخه صرف نظروشي. هرښوونيز پروګرام ځانګړی تاثيرلري ا و د هغې سرته رسول ضروري دي. نوکه آبي رنګ په لاس کې نه وي، په رنګه پنسل، پلاستيکي رنګونوچې د رنګمالۍ لپاره کارول کېږي، رنګه طبيعي پوډر يا هره هغه ماده چې ستاسې په چاپيريال کې وي، هنري فعاليتونه پرې سرته ورسوي.که مناسب کاغذمونه درلود، دشيرينيودقطۍ له کاغذ يا د بوټو له قطيوڅخه ګټه واخلئ. که سلښت مونه درلودل يوڅه بورې ته اوبه واچوئ او د کاغذونو نښلولو لپاره يې وکاروئ. که زده کوونکي مويک نه لري.مويک جوړول تاسې په تصويرکې وينئ، د هغې جوړول دوی ته ورزده کړئ. يوله هغه لارو څخه چې د هنرښوونکي يې کاروي، داده چې له زده کوونکوڅخه وغواړئ چې دفعاليتونودسرته رسولولپاره مناسب کاغذونه، رنګونه اونورموادپيداکړي. د وی داسې شيان پيداکولی شي چې دنوروزده کوونکولپاره هم دګټې اخيستنې وړشي. شايد ځينې زده کوونکي په نوو فکرونو داسې وسيلې جوړې کړي چې په هنري فعاليتونوکې ګټورې تمامې شي.

په کلي ډول عنوان شوي وسيلې دفعاليتونودسرته رسولولپاره يوه بهانه ده، نشتوالی يې د پروګرام دسرته رسولومانع نه ګرځي، د هرلوست په پای کې دزده کوونکو آثارننداري ته وړاندې کړئ، ترڅودوی يو د بل کارونه وګوري اوتجربه ترلاسه کړي. يوله لارو څخه داده چې په پړي يا تاربانديې انځورونه وځړول شي اوپه مناسبه ارتفاع کې وي چې ټول يې ووينې. د حجمونو د ليدلولپاره چې دلاسي کاروپه پروګرام کې شامل دي، کولی شي د ټولګي له ميزونوڅخه او ياد ميزونوترمنځ له فاصلې څخه ګټه واخلئ، ترڅوټول حجمونه وليدل شي. د هر ټولګي د پرمختګ لپاره، مهمه داده چې زده کوونکي بايد وهڅول شي چې د هرنوي فکر، په کارونه کې نوښت، په زړه پورې وسيلوجوړول او د نظافت په ساتلوکې هڅول دي.

د هنردښوونکي ډېرمهم کارددادی چې دوخت مديريت وکړي، چې په درسي ساعت کې موضوع معرفي کړي، هغه څه چې دموضوع په اړه ضروري دي، بيان کړي، هغه عکسونه چې دموضوع په پېژندنه کې مرسته کوي، وروښيي اوله زده کوونکوغواړي چې په رسامۍ کې د کار له تماميدووروسته دې خپل آثار د ننداري لپاره کېږدي ، بيادې وهڅوي، د کارو په هکله دې سره وغږېږي اوپه پای کې ورته لارښوونه وکړئ چې د ځان اوټولګي دنظافت په اړه هلې ځلې وکړي.

**۱ – په متوسطه يامنځنې دوره کې انځورګري**:

په ابتدايي دوره کې دزده کوونکوانځورګري خاصې ځانګړتياوې لري. هغوي هرڅه چې احساسوي، د ذهني شکلونواورنګونوپه مرسته يې ننداري ته وړاندې کوي. اندازه يې سره ورته والی نه لري. هغه څه چې دوی ته ډېرارزښت لري چې هر شي لوی اوغټ انځوروي. د ودانيو منځنۍ اوباندې فضايوځای تصويروي. ترڅوهغه چې

دکوټې په دننه کې واقع کېږي، وښيي، بېلابېل شيان غواړي، په يوه وخت رسم کړي ياځوپاڼې کيسه په يوه صفحه کې وکاږي، په يوه صفحه کې د ژورتيااوپرسپکتيو، دښودلو، ځانګړي لارې په نوي ډول منځ ته راوړي. بايدوپوهېږوچې داځانګړتياوې دوخت په تيرېدوسره تغييرکوي. زده کوونکي له فزيکي ودې سره سم په ذهني لحاظ هم پراختياکوي، واقعيت اوواقعي نړۍ ته ورنږدې کېږي. لړلړ تناسبونواواندازوته پاملرنه کوي. واقعي رنګونه درنګه کولولپاره کاروي اوپه (پرسپکتيو) پوهېږي اوغواړي هغه څه چې ويني انځوربې کړي.

په کلي ډول منځنۍ دوره دماشومتوب اولويتوب په منځ کې واقع ده، نو ځکه د زده کوونکو ليدنې لويانوته ورنږدې کېږي. دا مشخص تغيير، په کوم سن کې صورت نيسي.ځکه د هرزده کوونکي شرايط بېل بېل دي. نوپه دې اساس دانځورګري، له واقعي نړۍ انځورګري او له اسلامي هنرونو څخه کاپي کول د دې پروګرامونو وړاندې کول له زده کوونکو سره مرسته کوي چې هغه څه چې په خپل ذهن کې مجسم کوي، انځور کړي.

داډول فعاليتونه دماشومتوب دورې ذهني خلاقيت ته ادامه ورکوي، د مفکورې د وړاندې کولو د امکان زمينه برابروي او په طبيعي ډول دماشومتوب له دورې وروسته دمختلفوموضوعګانودتجسم توان دتصويرونوپه جوړولوکې کمېږي، امادمناسبوتمرينونوپه وړاندې کولوسره داځانګړتياوې حفظ او دوام ورکړئ. ذهني انځورګري په دووډولو وړاندې شوې ده، لومړی ( اتفاقي انځورګري) نومېږي، په دې معناچې لومړی ځانګړې موضوع زده کوونکوته نه وړاندې کېږي، بلکې ديوه فعاليت په جريان کې دوی کولی شي چې له خطونويا له جوړوشويوسطحو څخه استفاده وکړي، په هغې کې دې شکلونه پيداکړي اوخپلې ذهني مفکورې دې انځور کړي.

دوی دې له خطونو، شکلونواورنګونوڅخه په ګټه اخيستلو، دخپلې خوښې موضوع ترسيم کړي. دا لاره د زده کوونکو ذهن فعالوي او د دوی د خلاقيت غوټې خلاصوي. په دويمه طريقه يا له مختلفوموضوع ګانوڅخه د ذهني انځورګري، پراړوند ځانګړې موضوع زده کوونکوته وړاندې کېږي او دوی خپل ذهني تصويرله موضوع څخه نقاشي کوي يعنې په شکل جوړولوپيل کوي. دذهني انځورګرۍ په پروګرام کې ښه والی دا دی چې لومړی زده کوونکي د لوست له موضوع سره بلدشي. دموضوع په اړه په مختلفولارو په هر ليست کې دمعلوماتووړاندې کول. دبېلابېلوتصويرونوښودل چې دموضوع په هکله پوره معلومات زده کوونکي ته ورکړي.دخوښې شوي موضوع په باره کې ( دموضوع مختلف حالتونه يا دموضوع ځانګړتياوې )، د زده کوونکوخبرې اترې په خپلومنځوکې اوپر موضوع د ښوونکي غربېدل، کولی شي زده کوونکي انځورګري ته تياريا اماده کړي.

سربېره پردې کولی شو، د موضوع په اړه بېلابېل عکسونه زده کوونکوته وروښيو، ترڅودوی يې پرتله کړي. خودانځورګري په وخت کې بايد عکسونه پټ شي، ترڅو دوی تقليد ونه کړي او هر يوخپله هغه يادونه چې دعکسوله ليدلوڅخه يې لري، وکاږي، په ياد ولرئ چې په مختلفوذهني انځورونوکې غيرواقعي رنګونه په خپلوکاروکې وکاروي او دوی بايدمجبورنکړوچې داصل په شان کاروکړي. دذهني انځورګرۍ دوړاندې کولويوه موخه داده چې له يوې موضوع څخه بېلا بېل تصويرونه منځ ته راځي له واقعي نړۍ څخه انځورګري په هغه پروګرام کې شامله ده چې زده کوونکي خپل چاپيريال ته په ځيرکتيا سره پام وکړي.

شــکلونه، رنگونــه اومختلــف جوړښــتونونه ســره پرتلــه کړي،تناســبونه، لــرې، نــژدې او بېلابېــل ریتمونــه پــه خپلوانځور ګریوکې په کاریوسي، دا پروګرام کاملاً ذهني فعالیت دی او له زده کوونکوسره مرسته کوي چې ذهنـي او واقعي نړۍ بې په یوه وخت کې پراختیا وکړي. په دې فعالیت کې موضوع د زده کوونکوپـه مخکـې پرتـه ده او دوی باید په هغه کې شکلونه، رنګونه، جوړښتونه اواندازې پـه ځیرسـره وګـوري. هغـه څـه تـه چـې لـرې او یـا نـژدې دي پاملرنه وکړي او تجربه یې کړي. د شکلونو څنګ په څنګ کېښودلوکې لریوالی او نژدېوالی وښـیي، ریـتم تـه پاملرنـه پـه نقاشۍ کې زیات ارزښت لري. د غرونو ترڅنګ د ونو د شتون ریتم، د مني په موسم کې د ونو د پاڼو د رنګونـو ریـتم، یاپه بازار کې د میوه پلورلو دوکانونه د هرډول نظـم تکرارچـې پـه خطونـو، شـکلونو، رنګونـو، جوړښـتونواواندازوکـې لیدل کېږي. له پاملرنې لاندې ونیول شي، ترڅوزده کوونکي یې په خپلونقاشیوکې وښیي. د دې فعالیت اصلي موخـه له طبیعت څخه (ریالیستکي) تقلیدنه دی، بلکې دا موضوع له زده کوونکوسـره مرسـته کـوي چـې لـه طبیعـت څخـه خپلې لومړنۍ تجربې د کاغذ پر مخ وړاندې کړي.دوی څه ډول ګوري؟ پخپلوانځورونوکې څـومره بریـالي دي اوکـوم ټکي باید دوی ته ور زده کړو، ترڅو په کتنوکې ډېرغور او دقت وکړي. ښوونکی باید زده کوونکو ته انځور ونـه کـاږي اویادکارپه وخت کې ددوی په ځای تصمیم ونه نیسي.
د ښوونکي باید پام وي چې زده کوونکي په دې سن کې کولی شي چې د منلـو وړتـصویرونه وباسـي، امـا د طراحـي اوانځورګري سیوري او روښنایي چې لویان یې انځورولي شي، د دې ټولګي د زده کوونکوپه هنري توان کـې وجـود نه لري، نو دوی باید دې کارته مجبورنشي، چې دلویانوپه شان کاروکړي. په حقیقت کـې دا پروګـرام د لویانودریـالېزم په نقاشۍ کې منځنی ځای لري. دریمه ډله دنقاشۍ پروګرامونه چې په اتـم اونـهـم ټـولګي پـورې اړه لـري، داسـلامي هنرونوکاپي کولوته ځان ګړي شوي دي. دا فعالیتونه د هنر د تاریخ له لوستو سره سم په پام کې نیول شـو ي دي. پـه دې لوستوکې د اسلامي دورې دطرحو تمرینونه اوډیزاینونه دکاپي پـه شـکل وړانـدې شـویدي. پـه دې تمرینونـوکې دکاپي کولو پر لارې سربېره د طرحودسرته رسولونظم، تناسبونه، ریتم اوښکلا دزده کوونکوذهن ته انتقـال مـومي او د دې طرحودرنګونو پرزده کړې ټینګاردزده کوونکودښکلاپېژندنې روحیه پیاوړې کوي.
په طبیعي موادوټاپه کول، ښکلي اوبېلابېل جوړښتونه لري چې پـه معمـولي ډول موږورتـه کمـه پاملرنـه کـوو. پـه دې لوست کې له زده کوونکـو وغـوارۍ چـې مختلف رنګـه ټـاپې دونولـه پـاڼو، دونولـه پوسـتکو، دالوتونکولـه بڼکـو، لـه مختلفومیوو اوسابو یا (هرڅه چې په لاس کې لري) جوړې کـړي اوطبیعـي جوړښـتونه تجربـه کـړي. کلـه چـې د ټـاپې رنګونه وچ شي، نوبیاپې له مختلفوزاویوڅخه ورته وګوري او بد شکلونه پکې پیداکړي ( تصویرلټول)، وروسـته درنګـه پنسل په واسطه دخپلې خوښې انځورجوړکړۍ. پـه دې فعالیتوسـربېره زده کـوونکي کـولی شـي چـې خپـل دخوښـې انځوررسامي کړي او درنګه کولوپه ځای دې له رنګه ټاپوڅخه په انځورګرۍ کې ګټه واخلي

**۳- ۲- لاسي کار:**

زده کــوونکي پــه انځــورګري کــې دخطونواوصفحوســره بلدشــول. دلاســي کارپــه برخــه کــې د ځینــو ارزښــتونو او د ( حجمونو) له جوړولوسره بلدیږي او زده کوي بې چې څـه ډول خـط اوصـفحه پـه (حجـم) چـې درې اړخونـه لـري

بدلوی دلاسي کارپه جوړولو کې له ډېروشيانوڅخه ګټه اخيستل کېږي. په اتـم ټـولګي کـې لـه دې موادوڅخـه، لکـه: کاغذ، مقوا، درس خټه، طبيعي مواد، لکه: ډېره، ښاخونه، دنباتاتو پاڼې او داسې نوکارول کېږي.

**۱ - ۲- لاسي کار**: دزده کوونکود ذهن، ستر ګواولاسودهم غـږیځ حاصـل، د شـيانو او حجمونوجـوړول دي. د شـيانوپه جوړولوکې زده کوونکي لومړی باید شکل پيداکړي اوبيايې په جوړولوپيل وکړي.

**د شکل پيداکول**: زده کوونکي باید په خپل چاپيريال فکروکړي او بيا هغه مواد پيداکړي چې د شـکل لپاره کـارېږي، لکـه: يـوه ټوټه تېږه يادلرګي يوه ټوټه چې ښايي يوه الوتونکي ته ورته وي، د هغې دستر ګواوسنبوکې ځايونـه پـه رنـګ مـشخص کـړي چې تکميل شي. په شکل جوړونه کې: مواد د خپلې ذهني طرحې په شان شکل ته تغيير ورکوي، يا بې يو لـه بـل سره وصل کـوي، ترڅوهغه انځور چې غوښتی یې وي، جوړ کړي، لکه: له خټې څخه د يوه الوتونکي جوړول.

۱- د زده کوونکوحساسيت له خپل چاپيريال اوشاوخواسره زياتوي.

۲- د زده کوونکو تفکر، خيالونواوخلاقيت ته پراختيا ورکوي.

۳- فزيکي توان اوحواس يې په ځانګړي ډول دليدنوحس او دلامسې حس تقويه کوي.

۴- زده کوونکي له مختلفو وسيلو اوموادو، قابليتونو له کارولوسره بلدوي.

۵- د زده کوونکو فکر ته بدلون او د خپل چاپيريال ښکلاته يې جلبوي.

۶- زده کوونکي له دودونو، ادابواوفرهنګ سره زيات بلدوي.

۷- دوی ته مصروفيت اوخوندوروختونه برابروي.

**ديوځای کيدوډولونه**:

۱- د تېزې نوکې لرونکي وسيلو په واسطه سوري او له هغې څخه رنګه فيته، سيم او داسې نورو تيارول.

۲- د تنې په واسطه يوځای کېدل.

۳- د سټيپلر په واسطه يوځای کېدل.

۴- په سلينبنتو، کنډ، سکاشتيپ، لنده بوره اوننبلول

۵- دپوزکې دجوړښتونوپه شان د سوري شوي کاغذ په واسطه اويانريولښتود ګډون په واسطه، لکه: دټوکري جوړېدل.

۶- دستنې، سنجاق، کرېږ ستنې، دويښتانوسيخک، نيوونکي ( ګيرا) اونوروپه واسطه.

۷- د دوو ټوټو خټو يو ځای کېدل، لکه په لوښي پورې دلاستي ننبلول په دې کارکې هغه ځايونـه چـې د لاسـتي يـا د ننبلولو پر وخت دواړه ځايونه لږڅه وګرول شي چې لږڅه ببر يا زيږشي اوبياوننبلول شي، وروسـته دې د نـریځ شـوې خټې ( خړوبـي) پـه واسـطه دلاسـتي خټـه او د لوښـي پـه بـدن و مـښي، ترڅوکـوم خـط اوزيږوالـی پـاتې نـه شـي او صاف شي.

د رس خټې تيارول، يوه ورځ مخکې د رس خـاوره لـه پرويـزې او يـا جـالۍ څخـه وباسـئ. يـوه انـدازه خـاوره پـه يـوه مناسب لوښي کې واچوئ، لږې اوبه پـرې واچـوئ اوهغـه پـه ارامـي سـره دخميـر پـه شـان پـه سـوک ووهـئ اوهغـه واغږئ. هروخت چې خټه په لاس پورې ونه ننبلي، د هغې اوبه په اندازه دي، يعنې نورو اوبو تـه اړتيانـه لـري، تيـاره شوې خټه په يوه پلاستيک کې ونغاړئ اوويې ساتئ:

دکارپه وخت کې لړه خټه د بوړکي (لولې) په شان جوړه کړئ او منظمه یې کړه کړئ، که چېرې ونه چوولـه، نو د کارکولو لپاره تیاره ده ،که وچووله، خپل لاس لوند کړئ او هغه و اغږی ترڅوتیاره شي.

که خټۀ دیوې اوږدې مودې لپاره لمده پاتي شي، شکل منونکي خصلت بې زیاتیږي. دخټینولوښو جوړېدل په درو لارو سرته رسیږي، لکه: لاسي، څرخي اوقالب کولو، خټه تروچېدو ورسته سختیږي امادرطوبت په واسطه ددویم ځل لپاره نرمیږي. دختې وچېدل دحجم له جوړولو وروسته ډېر مهم دي، ځکه چې که په مرطوب ځای کې ونه ساتل شي ډېر ژر وچیږي او چاودیږي. کله چې دختین حجم د باندې برخه وچه شي او دننه لمده وي او د ختې فشارد چاودېدو سبب کیږي، نوځکه باید په سرعت وچ نه شي. جوړشوی حجم په پلاستیک کې باید وپیچل شي او په پلاستیک کې واړه واړه سوري چې هوا په محدوده توگه ورداخله شي. جوړشوی حجم باید ورو ورو وچ شي. له وچېدووروسته، کولی شي، هغه پوخ کړئ، چې په دې صورت کې هغې ته سفالي وایي. خټه په بټۍ کې دتودوخې له امله محکمه اوسختیږي، دوخت په تېرېدوسره دهغې شکل تغیرنه کوي. د رس ختې رنگ مخکې له پخېدو اوورسته ترپخېدو تغییرکوي. که درس خټه خالصه وي، تروچېدو وروسته سپین رنگ غوره کوي اوکه په هغه کې داوسپنې اکسایډ موجود وي، نورنگ یې سوروي، که کاربن ولري، توربخن اوکه گرافیت ولري، دایرورنگ غوره کوي.

زده کوونکي په منځنۍ دوره کې د ختینو لوښو جوړول، د ختینو لوښو وچېدل او د هغې رنگه کول زده کوي.

**په ټولگي کې کاري سپارښتنې**:

په ځانگړي درسي ساعت کې درس په خټه حجم جوړونه ضروري ده.

۱- زده کوونکي دې له صحي ختې څخه گټه واخلي.

۲- نوکونه یې باید لنډشوي وي.

۳- دخټوکارولوپه وخت کې باید د کارجامې او یازړې نارینه جامې چې تنې یې شاته وترل شي واغوندي.

۴- دمیز مخ په پلاستیک اویا باطله کاغذ وپوښي.

۵- د اوبو له مناسب لوښي څخه استفاده وکړي. داوبولوښی بایدلږ څه دروند اولوی وي، ترڅو په اسانۍ چپه نه شي. یوه سفالي کاسه ددې کارلپاره مناسبه ده.

۶- دکارله پیل مخکې، ښوونکی باید له زده کوونکوسره خبرې پیل کړي، دمخکینیو تجربو او د هغه څه په اړه چې دوی یې جوړ وي خبرې وکړي.

۷- زده کوونکي دې دپروگرام له مخې په خټوکارپیل کړي.

۸- دکارپه وخت کې دې اضافي خټه په پلاستیک کې وپېچي چې وچه نه شي.

۹- دحجم دچاودېدوپه صورت کې دې چاودشوي ځای ته گوتې لمدې کړي اولږڅه فشار ورکړي چې سره ونښلي.

۱۰- د دوو ټوټو ختو اتصال یایوځای کېدل، لکه: (پر لوښي د لاستي نښلول) همداډول دنظروړځای په نوک تېز شي باندې زیږ کړئ او دخړوبۍ په مرسته او د گوتو په فشار سره یې ونښلوی.

۱۱- دکارله تمامېدووروسته د هغه سطحه داسفنج اوخړوبي په واسطه ښویه کړي.

۱۲- کولی شي په بېلابېلو لارو له راټولو شویو موادو څخه په ګټه اخیستنه، د خټین لوښي مخ پـه مختلفـو ډیزاینونـو ښکلی کړي.

۱۳- پاتې خټې په پلاستیک کې وپیچئ اوپه سرپوښ دارپلاستیکي قطي کې یې واچوئ.

۱۴- د کار له خلاصیدووروسته داوبولوښی پریمینځي اوپه مناسب ځای کې یې کېږدئ.

۱۵- جوړشوی خټین لوښی په یوه الماری کې په ټوټه شوي کاغذوکې کېږدئ.

۱۶- له کارکولووروسته خپل لاسونه په اوبواوصابون پرېمینځئ.

۱۷- د کارجامې وباسي اوپه مناسب ځای کې یې کېږدئ.

۱۸- زده کوونکي کولی شي خپل حجم له وچېدووروسته رنګه کړي. ددې کارلپاره له هغـو رنګوڅخه چې ډیـر ژرپـه اوبوکې حل کېږي، لکه: روغني رنګ یا آبي رنګ خو ډېرښه رنګ آبي رنګ دی ، ځکه چې په ښـه ډول پـه اوبـوکې حل کېږي اوله هغې څخه استفاده اسانه هم ده. د رنګه کولوپه وخت د سطحې مطابق له لوی اویاوارہ مویـک څخـه استفاده کولی شي، له رنګه کولووروسته په هغه باندې ورنـس یـاجلا لرونکـي تیـل ومـښي، ترڅورنـګ یـې لـه منځـه لاړنه شي.

دا عملـي فعالیـت د خټین حجـم لـه جوړېـدو سـره د زده کوونکـو بلدېـدل دي. زده کـوونکي د اووم ټـولګي پـه ۱۲ لوست کې د رس خټې له تیارولو او جوړولو سره بلد شول او په ۱۴ لوست کې یـې لـه خټـو څخـه د حجـم جوړېـدل تجربه کړل، په دې لوست کې له خټوڅخه د قلمدانۍ اوله خټې څخه د مختلفـو حجمونـو جوړېـدل زده کـوي. پـه دې لوست کې زده کوونکي د خټوله لولو او یا بوړکیو څخه د حجمونو جوړول زده کـوي، د لولـو جوړېـدل او د هغـې یـو پر بل کېښودلو په واسطه دخټوحجم لاس ته راځـي، چې پـه لاسـوکارول کېـږي. د لوښـي دبـېخ لـه جوړېـدو وروسـته لومړی لوله پرې نښلول کېږي، بیانورې لولې یوپه بل پسې نښلول کېږي، ترڅو د قلمدانۍ دیوالونه تکمیل شـي خـو د لولو د نښلولو مخکې باید هغه ځای لرڅه په یوه نوک تیز لوښي زیږ کړای شي او بیانورې لولې دیـوې او بلـې پـر سرکېښودل شي او د ګوتوپه فشارسره محکمې شي.

وروسته یې باندني دیوالونه په ګوتواویاوړوکي چاړه ښوی کـړي، ترڅودلولوخطونـه معلـوم نـه شـي اوصـاف شـي. تـر وچېدو مخکـې د پنـسل اویاپـه اثرپرېـښودونکو وسـیلوباندې د هغـې پـرمخ ډیزاینونـه رامـنځ تـه کـړي، ترڅوښـکلا پیداکړي، زده کوونکي کولی شي چې د لوښي تروچېدووروسته هغه د خپلې خوښې په رنګـو ورنګـوي. زده کـوونکي باید وپوهېږي چې هرڅه چې جوړشوي دي، یوجوړونکی لري چې قلمداني یـې یـوه نمونـه ده. دوی هـم کـولی شـي چې ډېر لوښي جوړکړي. په خپله شاوخواکې ټولوجوړوشویولوښـوته پـه غـور او دقـت وګـورئ اوفکروکـړئ چـې دا لوښي له کومو موادوڅخه اوپه کومو لاروجوړشوي دي، کوښښ وکړئ چې هغې ته ورتـه شـیان جـوړکړئ. لـه خپلـو جوړو شویو لوښو څخه کیدای شي په خپله ګټه واخلئ او یایې چاته د خرڅلاو لپاره وړاندې کړئ.

**۴- ۲- د هنر له تاریخ سره بلدتیا**:

فرهنګ اوفلکلوردهرې ټولنې د هویت ځرګندوی دی. له تاریخي عواملوسره بلـدتیا د هرهېـواد پـه شـکل نیونـه کـې تاثیرلري. د هنراوفرهنګ ارزښت دادی چې د ملتونو سرنوشت له (تیرونسلونو تر اوسه)، چې نوي نسل تـه یـې زده

کړه ضروري ده. له دې سببه د هنرتاریخ د هر هېواد د تاریخ مهم جز دی، چې فکري تحولاتو او د تاریخ په اوږدوکې دملتونو د بدلونونوبنسټ ایښودونکي دي، د لویوملتود فکري او فرهنګی بنسټونو، د یرغلګرو قومو چې د نورو د ځمکود نیولو قصد یې درلود. ترتاثیرلاندې راولي او د دوی افکارېې له وژلو، ویرانی څخه د ابادۍ او د هنري آثارودمنځ راووستولورته بدلون ورکړ. نوځکه د هرهېواد دهنراوفرهنګ لرغونتیا اوارزښت او د هغې پېژندنه، ساتنه، جوړونه او د هنري آثاروتولید اورواجول د ملتونود پرمختګ سبب ګرځي، نوځکه د افغانستان اونړۍ د هنر تاریخ په دې تعلیمي دوره کې چې د ځوانانو شخصیتونه شکل نیسي، زیات ارزښت لري. هغه نوي ځوانان چې د خپلې خاورې له فرهنګ او هنرسره بلدتیا ولري، هېڅ وخت د نورو د فرهنګ تر اغیزو لاندې نشي راتلای او د نورود فرهنګي یرغلونو تراغېزې لاندې قرارنه نیسي.

نوپه دې وجه د هنرد تاریخ برخه په منځنی دوره کې طرحه او په نظرکې نیول شوې ده، ترڅوزده کوونکي وپوهېږي چې د هېواد لپاره هنري میراثونه، تاریخ اوفرهنګ ډېرلوی ارزښت لري، په ساتنه کې یې باید کوښښ وکړي. زده کوونکي په اووم ټولګي کې  له اسلام نه مخکې د هنر له تاریخ سره بلدشول. د نړۍ د هنر د تاریخ په برخه کې د ډېرو دورې هنر( له تاریخ څخه مخکې هنر)، دبین النهرین هنر، مصراوایران، دهندهنر، چین اولرغوني جاپان، دلرغوني یونان او روم هنرونه، ( د تاریخي دوروهنرونه) او دمسحیت هنراوذهني هیکلونه دي چې دتاریخ په اوږدوکې جوړشویدي. په دې کې یوازې دلرغوني یونان اولرغوني روم هنري آثار ریالیستیک خصلت لري چې له طبیعت څخه په تقلید دیوالي نقاشی اوهیکلونه جوړ شوي دي. په دې تاریخي دوروکې به له ډېروساده وسیلواونقاشیوڅخه بیا تر ډېرو پېچلو اولویوحجموسره بلدشو. د اووم ټولګي کتاب په دریم لوست کې دنړۍ هنر د لرغون پېژندونکوپه کشفیاتو کې، لکه: (واړه هیکلونه) اوپه افغانستان کې پاتې شوي آثار، لکه: د (بامیانو هیکلونه) هم لیدل کېږي.

د اووم ټولګي اخیري لوست چې مسیحي هنرته ځانګړی شوی دی، د مسیحي هنرمندانوپلټنې ددې لپاره وي چې مناسب قالبونه خپل دیني هنر ته پیداکړي. په اتم ټولګي کې داسلامي دورې مختلفوهنرونومعرفي ته ځانګړې شوې ده. داسلامي لویوځمکوپه جغرافیه کې مسلمانوهنرمندانو، داسې هنراځرګندکړچې دښې اومحتواله نظره د وحدت اویووالي لرونکی دی.

**۳- دتدریس دپلان لارښود**:

د تدریس د پلان لارښود، د زده کړې موخې، د تدریس لارې، د تدریس ضرورتونه او د لوست ارزونې لاره بیانوې. په اخیرکې دښوونکي د تدریس فعالیتونه (دمفاهیموزده کړه اوارزونه) او د زده کوونکودیادولوفعالیتونه ښکاره کوي. د هنردمضمون د تدریس کولواو دزده کوونکودهنري فعالیتونوله سرته رسولوسره دښوونکو بلدېدل. داتم ټولګي د تدریس د پلان لارښود د ټولو لوستونولپاره وړاندې شوي دي.

## د لومړۍ لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د سیایي په ټکو انځورګري.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د سیایي په ټکو کې له تصویر لټونې سره بلدېدل.<br>۲- د سیایي په ټکو کې د خطونو له ورزیاتولو سره بلدېدل.<br>۳- د سیایي د ټکو له نقاشي سره د زده کوونکو علاقه مندي او د درک پیاوړتیا. | |
| ۳- د لوست ډولونه | عملي، توضیحي، ګروپي. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | رنګ، پنسل، پنسل پاک، پنسل تراش، کاغذ، مویک | |
| ۵- د ارزونې ډول | پوښتنې او ځوابونه، د ستاینې درجې، ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | له زده کوونکو سره روغبړ او همدارنګه د لوست په اړه پوښتنې او ځوابونه. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>د سیایي په ټکو کې څو ډوله تصویرونه موندلی شئ؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۱- ښوونکي دي د زده کوونکو فعالیتونه په غور او دقت وګوري. د دوی پوښتنوته دې ځواب ووايي.<br>۲- ښوونکي دې د زده کوونکو کارونه وګوري او هغه دې وارزوي. | ۱- زده کوونکي دې د سیاهۍ په ټکو کې بلدشکلونه پیدا کړي او د خطونو په زیاتولو دي هغه تکمیل کړي، د اړتیا پر وخت کې دې له ښوونکي څخه پوښتنه وکړي.<br>۲- زده کوونکي دې خپل کارونه نوروته ورښکاره کړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دې فعالیت ته ورته فعالیتونه په اووم ټولګي کې زده کوونکو ته وړاندې شوي دي. په اووم ټولګي کې هریو زده کوونکي د خطونو په اضافه کولو خپلې نقاشۍ تکمیل کړي. دا دواړه فعالیتونه د تصویر پیدا کول دي، ځکه چې د انځورګري موضوع په کې ټاکل شوې نه ده، بلکې زده کوونکي په ټکو باندې خطونه ورزیاتوي او د خپلې خوښې بڼه انځوروي. زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې لږ څه غټ ټکي د پاڼې پر مخ کېږدي، ترڅو په ښه توګه وکولی شي چې تصویرونه پکې پیدا کړي. هر څومره چې ټکي زیات وي، د آشنا شکلونو د پیدا کولو امکان زیاتېږي. له دوی څخه وغواړئ چې ټکي له هرې خوا وګوري، ښایي چې له یوې زاویې څخه خپل بلده بڼه پیدا کړي او په پنسل هغه تکمیل کړي. هغه زده کوونکي چې ټکي یې انځور کړي دي، ډېر وهڅوئ. هرڅومره چې دوی ابتکار کوي، ډېر زیات یې تشویق کړئ.

د درسي کتاب له مخې کورنۍ دنده ورکړئ او دا کار په ټولو لوستونو کې سرته ورسوئ.

## دوهم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **په اسلامي دورهٔ کې د افغانستان د هنر له تاریخ سره بلدتیا.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې وپوهيږي.<br>۱- د افغانستان د هنر له تاریخ سره په ځانګړې ډول په اسلامي دورهٔ کې بلدشي.<br>۲- په افغانستان کې د هنري آثارو له پراختيا سره بلدېدل.<br>۳- د افغانستان په اسلامي ودانيو کې د رنګونو درک کول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | پوښتنې او ځوابونه، توضيحي، ډلييزې غربيدنې. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | د لوست د کتاب تصویرونه، کاغذ، قلم. | |
| ۵- د ارزونې ډول | تحریري، تقریري، ځاني کتنه، د ستاينې درجې، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعيف. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>نوي لوست ته د زده کوونکو چمتو کول، پوښتنې او ځوابونه. | وخت ۵ دقيقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>په اسلامي هېوادو کې کوم هنري اثار ستاسې د پام وړدي؟ | ۵ دقيقې |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- |
| ۱- زده کوونکي دې د افغانستان د هنر د تاریخ حیرانوونکي بحثونه واوري او مهم ځایونه دې یادداشت کړي.<br>۲- زده کوونکي دې په افغانستان کې د اسلامي هنر ځانګړتیاوې د دې لوست د تصویرو له مخې کټ مټ نقاشي کړي. | ۱- ښوونکي دې په اسلامي دوره کې د هنر د تاریخ په هکله توضیحات ورکړي.<br>۲- ښوونکي دې د دې لوست د تصویرونو له مخې د افغانستان اسلامي هنرونه وروپېژني.<br>۳- د زده کوونکو د زده کړې اندازه وارزوي او له ځان سره بې ولیکئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې د اسلامي هنراصلي ځانګړتیاوې بیان شوي دي. په دې لوست کې د اسلامي هېوادو د هنري آثارو د شکل نیولوځرنګوالي، معنااومفهوم په کلي ډول لیکل شوي دي. داسلامي هېوادونو د آثارو نمونې په دې لوست کې وړاندې شویدي، چې مشترک ټکي یې په ډېره ښه توګه څرګندوي.د دې لوست د تدریس لپاره باید ۹، ۱۱، ۱۳ او ۱۵ لوستونه وکتل شي، ترڅو د اسلامي هنرونو له معنا سره بلدتیا پیدا کړي. په دې اساس دویم لوست په ډېره ښه ښه وړاندې شوې دی، په دې ډول دویم لوست د هنري آثارو د پېژندګلوي لپاره ځانګړي شوي دي چې په اسلامي تمدن کې د افغانستان په هکله جوړ شویدي چې د اسلامي حکومت له قوانینو څخه پیروي کوي، باید زموږ د هېواد د آثارو نمونې د نورو اسلامي هېوادو د هنري آثارو اړیکې زده کوونکو ته روښانه شي اوتوضیحات ورکړل شي چې حسن خط، معماري، او لاسي صنایع د دې هېوادو ترمنځ شریکې جرړې یا ریښې لري. د هر هېواد د هنري آثارو ځانګړتیاوې د هغو په جزییاتو او ښکلاوو پورې اړه لري. د اسلامي معماري په لوست کې د بېلا بېلو منبرونو ، محرابونو او منارو بیان شوي دي، د لاسي کارو په هکله هم دا ځانګړتیاوې موجودي دي او حتي د یوه هېواد په ښارونو کې د نقاشي او ډیزاینونو او خاص رنګونه تر سترګو کېږي اما د هنري آثارو طرحې په ټولو اسلامي هېوادو کې یو شان دی.

## دریم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون**

<table>
<tr><th>سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو بیان</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">په طبیعي موادو ټاپه کول.</td></tr>
<tr><td>۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې)</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي، چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- په طبیعي او مصنوعي موادو له ټاپه کولو سره بلدشي.<br>۲- د ساده ټاپو له طریقو سره بلدېدل.<br>۳- د چاپولو ارزښت او د بېلا بېلو ټاپو له ګټې اخیستنې سره بلدتیا.</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست ډولونه</td><td colspan="2">عملي، پوښتنې او ځوابونه، توضیحي. کتنې.</td></tr>
<tr><td>۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل</td><td colspan="2">رنګ، کاغذ، مقوا ، پنسل، طبیعي او مصنوعي ساده مواد.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې ډول</td><td colspan="2">د عمل کولو ارزونه، کتنې، ارتباطي مهارتونه، د ستاینې درجې ډېرښه، ښه منځنۍ او ضعیف.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>د زده کوونکو د حال پوښتنه او نوی لوست په پوښتنو پیل کړئ او د زده کوونکو ځوابونه په غور سره واورئ.</td><td>وخت ۵ دقیقې</td></tr>
<tr><td>د انګیزې رامنځته کول:<br>له ټاپې څخه په کومو ځایو کې استفاده کوئ؟</td><td>۵ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷- د ښـــوونکي د تـــدریس فعالیتونـــه ( د مفـــاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
|---|---|
| ۱- ښـوونکي مکلفیـت لـري چې د لوسـت نـه یـوه ورځ مخکې زده کوونکو ته ووایي چې د لوست اړوند وسـیلې له ځان سره راوړي.<br>۲- دوی ته اجـازه ورکـړي د کـارت او د پاکـټ د جوړولـو تصمیم ونیسي.<br>۳- د دوی هنري کارونه وارزوي او پایله دې لـه ځـان سـره ولیکئ او زده کوونکي دې کار کولو ته وهڅوئ. | ۱- زده کـوونکي دې طبیعـي مـواد لـه ځانـه سـره راوړي.<br>۲- د کـارت او د پاکـټ د جوړولـو طریقـه انتخـاب کړئ.<br>۳- زده کـوونکي دې په عملي بڼه خپـل کـار سـرته ورسوي او د هغې په نظافت کې دې هڅه وکړي.<br>۴- خپـل کارونـه دې رنگـه کـړي او پـه ټـولگي دې نندارې ته وړاندې کړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

زده کوونکوپه اووم ټولگي کې د گوتودټاپې تجربه کړې ده. په دې لوسـت کـې د گوتودټـاپې سـربېره زده کوونکـو دخپلې خوښـې شـکل تکمیـل کـړی دی ( تـصویرلټونه) پـه یـوه بـل فعالیـت کـې د گوتوټاپـه رنگـه شـویده (تصویرجوړونه) دې تجربو ته په پاملرنه په اتم ټولگي کې، په طبیعي موادوټاپه کـول وړانـدې شـوي دي، لـومړی زده کوونکي د ښکلو ټاپو دایجادولولپاره طبیعي مواد راټولـوي. دوی تـه یادونـه وکـړئ چې طبیعـي مـواد د ټاپـه کولوپه وخت نیمېږي (قطع). دمثال په توگه که ( مواد ) پـه عمـودي اویـا افقـي صـورت قطع کـړئ او د هغـې لـه ببلاببلوبرخوڅخه ټاپه جوړه کړئ، حیرانوونکي ډیزاینونه به مـنځ تـه راشـي. ځینې طبیعـي مـواد مختلفـې برخـې لري او له هرې برخې څخه کولی شي، ټاپه جوړه کـړي. دمثـال پـه توگـه دجوواروپوستکي یـوډول ټاپـه مـنځ تـه راوړي د هغې څونکه یوډول او دانې یې بل ډول ټاپه جوړوي.

# خلورم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون**

<table>
<tr><th>سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو بیان</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">د مبارکي کارت او د پاکټ جوړیدل.</td></tr>
<tr><td>۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې)</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- له ښېلا ښېلو ورځو او اخترونو سره بلدشي.<br>۲- د مبارکۍ له مختلفو کارتونو سره بلدشي.<br>۳- د مبارکۍ کارت له جوړولو سره بلدېدل.<br>۴- د مبارکو ورځو او د هغې کارت جوړولو درک کړي.</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست ډولونه</td><td colspan="2">پوښتنې او ځوابونه، توضیحي، کتنې.</td></tr>
<tr><td>۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل</td><td colspan="2">ډبل کاغذ ( مقوا)، عادي کاغذ، پنسل، سکاشټیب، خط کش، قلم.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې ډول</td><td colspan="2">ځاني کتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>د زده کوونکو د حال پوښتنه:<br>د اخترونو او مبارکو ورځو په هکله پوښتنې او ځوابونه په عملي توګه د کار پیلول.</td><td>وخت ۵ دقیقې</td></tr>
<tr><td>د انګیزې رامنځته کول:<br>آیا تراوسه مو خپلې مورته د مبارکۍ کارت جوړ کړیدي؟</td><td>۵ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷- د ښوونکي د تدريس فعاليتونه ( د مفاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه |
|---|---|
| ۱- د مبارکۍ د کارت او پاکټ جوړولو په اړه زده کوونکو ته اجازه ورکړي چې دوی په خپله تصميم ونيسي او په خپله يې طرحه کړي.<br>۲- د زده کوونکو کار وګورئ او پايله يې له ځان سره وليکئ.<br>۳- دا کار ستاسې سره د نمرو په ورکولو کې مرسته کوي. | ۱- ياد شوي لوښي دې له ځان سره ولري.<br>۲- د مبارکۍ کارت او پاکټ دې طراحي کړي.<br>۳- يوه ښکلي جمله په ښکلي خط د کارت په مخ وليکئ او خپلې کورنۍ ته يې وړاندې کړئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دا لوست زده کوونکوته دکارت اوپاکټ جوړول ورزده کوي. زده کوونکي بايد زده کړي چې ډېرشيان چې په بازارکې موجود دي اوخلک يې اخلي، کولی شو، هغه په خپله جوړ کړو اوله هغه څخه ګټه واخلو، ډېر ساده شيان چې دوی يې بايد جوړکړي، هغه د مبارکۍ کارت اوپاکټ دي. کارتونه اويا پاکټونه عموماً له مقوا اوعادي کاغذو څخه جوړېږي، چې جوړول يې زده کوونکوته اسان دي. دا لوست دوی ته وخت ورکوي چې خپلې ذهني مفکورې دکارتونوپه ښکلاکې وکاروي.

زده کوونکوته يادونه وکړئ چې کولی شي په خپل کارت کې رسامي، انځور ګري، ټاپه کاري، کولاژ، شبکه کاري او يا نور هغه څه چې دوی يې په ابتکاري ډول په ذهن کې لري، ښکلا ورکړي او دهغې لپاره مناسب پاکټ طراحي اوجوړکړي. دپاکټ ليکنه بايد په ښکلي خط وليکل شي اوزده کوونکي وهڅوي چې له مناسبوشعرونو څخه دکارت په ليکلوکې ګټه واخلي.

دوی په انتخاب، دکارت اندازه، دکارطريقه، دکارت دځنډوپه ښکلا، دکارت باندنۍ برخه او داخلي برخه، دپاکټ طرحه، او دپاکټ په ښکلا کې ازاد پرېږدئ. که زده کوونکي په يوه ابتکاري طريقه چې په کتاب کې نشته، ګټه اخلي، هغه وهڅوي اوتشويق يې کړئ.

# پنځم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده** ( یو درسي ساعت)

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له تناسباتو، لیرې اونیږدې ریتم سره بلدتیا.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- په طبیعي شکلونو کې له تناسباتو، لرې او نږدې ریتم سره بلدېدل.<br>۲- د طبیعت له شکلونو او تناسباتو سره علاقه مندي.<br>۳- په نقاشي کې د پرسپکتیو( لرې او نژدې) درک کول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | پوښتنې او ځوابونه، عملي، توضیحي، کتنې. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | پنسل، کاک کاغذ، پنسل پاک، تصویري چارت، طبیعي منظري. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو څخه د تیر لوست او نوي لوست په اړه پوښتنې او ځوابونه. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>په نقاشیو کې مو (لرې او نږدې ) ته پام شوي دی؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
|---|---|
| ۱- ښوونکو دې د پدیدو او شیانو د لیریوالي او نیږدې والي او تناسبونو په هکله زده کوونکو ته توضیحات ورکړي.<br>۲- د پرسپکتیو( لیرې او نږدې) دي دیوه معکب په شکل کې دوی ته وښیې.<br>۳- ښوونکي د طبیعي منظرو په نقاشي کولو کې زده کوونکو ته پرسپکتیو عملاً وروښیي او د دوی کارونه دې وارزوي او پایله بې ولیکئ. | ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي توضیحاتو ته پوره پاملرنه وکړي.<br>۲- د ښوونکو پوښتنو دې ته سم ځوابونه ووایي.<br>۳- په لوست کې دې د ستونزو په صورت کې له خپل ښوونکي څخه مرسته وغواړئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

لکه څرنګه چې له یوولسم څخه تر څوارلسمو صفحو پوري ویل شوي دي، چې زده کوونکي په ښلابېلوطریقودتناسبونو لرې، نژدې اوریتم په هکله په طبیعي پدیدوکې فکرکولوته اړباسي. په ټولګي کې له دوی څخه وغواړی چې دخپلونویو کتنوپه هکله سره وغږیږي، هریودې یو د بل په کتنوخپل نظروړاندې کړي، ترڅو د تجسمي هنرونوپه سم درک لاس بري پیداکړي. ریتم د خطونو، شکلونو، رنګونو، اندازو او جوړښتونو ترمنځ په اړیکه کې شامل دی. هر ډول منظم ریتم رامنځته کوي. ریتمونه په دوو ډلو یوې منظم ریتم او بل یې غیر منظم ریتم ویشل شوي دي. که چېرې د خطونو د فاصلې، رنګونو او د اندازو تغییر یو شان وي منظم ریتم منځ ته راځي د مثال په توګه: لکه د جوارو په دانو کې منظم ریتم ترسترګو کېږي د بوټو، اغزیو او د خربوزو په زړیو کې ریتمونه ډېر منظم دي.

که د خطونو، رنګونو او د اندازو بدلون فاصلې بېلا بېلې وي غیر منظم ریتم منځ ته راولی لکه د بحر د اوبو نا منظم موجونه چې د بحر غاړوته ځي او راځي، په ځنګلونو کې د ونو تنې چې په مختلفو فاصلو کې قرار لري غیر منظم ریتم بلل کېږي.

# شپږم لوست له منظرې څخه انځورګري د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له منظرې څخه انځورګري.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکوڅخه غوښتنه کېږي چې دلوست په پای کې په لاندنیوموخوباندې لاس بری پیداکړي.<br>۱- په خپله شاوخوا کې طبیعي او ښکلومنظروته ځیرشي.<br>۲- له خپل شاوخواطبیعت څخه یوه ښکلي منظره چې تناسبونه، لرې اونږدې، ریتم او درنګونوهم غږي پکې موجوده وي، انځور کړای شي.<br>۳- د طبیعي منظرې ښکلاوې درک کړي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | کتنې، پوښتنې اوځوابونه، شرحه او دکاریووالی. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | ډبل کاغذ یامقوا، رنګه پنسل، شنه رنګونه، مویک، داوبولوښي. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني بیاکتنه، د ستاینې درجې،(ډېرښه،ښه، منځنۍ او ضعیف، کتنې اوارتباطي مهارتونه). | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعایتونه:**<br>یوه منظره وګورئ او دهغې په باره کې یو له بل څخه د هغه شیانوپه هکله چې وینئ، پوښتنې وکړئ. | وخت ۵ دقیقې |
| | **پارونکې انګېزې.**<br>دپوښتنې کول: ستاسې دطبیعت په شاوخواکې دلیدنې ښکلي ځایونه شته؟<br>له هغې څخه کوم یودرسمولولپاره ټاکئ. | ۵ دقیقې |

| د زده کوونکو دیادولو فعالیتونه | ۲- دښــــوونکي دتـــــدریس فعالیتونـــــه ( دمفاهیموزده کړه اوارزونه) |
|---|---|
| ۱- د ښـوونکي توضـیحاتوته پـوره پاملرنـه کـوي او د پوښتنوسـم ځوابونه وابي.<br>۲- د ښوونکي په مرسته یوه ښکلی منظره انتخابوي.<br>۳- منظره په لومړي سرکې په پنسل انځورکړئ کله چې مطمئن شوی چې غلطي پکې نشته، بیا یې رنګه کړئ. | ۱- ښـوونکی دې تناسـبونه، لـرې اونـږدې او ریـتم پـه یـوه طبیعـي منظـره کـې عمـلاً زده کوونکو ته وښيي.<br>۲- د طبیعي منظرې د رنګونـو پـه هکلـه دې معلومات ورکړي.<br>۳- د دوی کارونـه پـه دقـت وګـورئ او پایلـه یې ولیکئ؟ |

### د ښوونکو لپاره اضافي معلومات

زده کوونکوپه پنځم لوست کې دتناسبونو، لرې، نژدې ریتم سره بلدشول اوپه دې هکله چې څـومره پـوه شـوي دي، باید دمنظرې په انځوولوکې ترې ګټه واخلي. دمنظرو د رسمولو په وخت کـې زده کـوونکي بایـد لـه ټـولګي څخه دباندې ووزي اوپه یوه مناسبه طبیعي فضاکې کاروکړي. په هغه فضاکې چې دوی کـار کـوي، بایـد امنیـت ولري ( نظامي ځایواوسرکوته نژدې نه وي )، ښوونکی وکړای شي چې ټول زده کوونکي ترنظر لاندې ولـري. هـر زده کوونکی کولی شي، له هرې زاویې چې غواړي منظره رسم کړي او دمنظرې هـره برخـه یـې چـې خوښـېږي انځور کړي، لکه: څرنګه چې په کتاب کې لیکل شوي دي، لومړی باید هغه څـه چـې لـوی ښـکاري انځـورکړي اوبیانوروشکلونوته دهغې په څنګ کې ځای ورکړي. طبیعت ډېرلوی دی او کاغذ ډېر کـوچني، نولازمـه ده هغـه ځای چې تاسې انځوروئ د کاغذ په تناسب وړوکی کړي، ډېرواړه شیان، لکه: (د ونـو پـاڼې) بایدحـذف کـړي. امـا هغه څه چې تاسي بې کارې، باید سم رسم شي.
دلویو او وړوکو جسمونودرسمولوپه وخت باید لرې اونژدې (پرسپکتیو) په پـام کـې ونیـسي اوپـه خپلـو انځورونـو کې لرې والي، نژدېوالي او ریتم ته پاملرنـه وکـړي،هم ونـو، دغروپـه شـاوخواکې کوروتـه، دبـرق ګروپونـو، مېږې دځرلوپه وخت کې هرڅه چې په منظره کې ترسترګو کېږي، په غور او دقت سره یې انځورکړئ. د رنګه کولـو پـه وخت کې زده کـوونکوته یادونه وکړئ چې سربېره پر واقعي رنګونـو چـې تاسـې عمـلاً وینـئ، ذهنـي رنګونـه هـم پخپلوانځورونو کې وکاروئ. هغه زده کوونکي چې منظره یې لویه انځور کړي وي، ډېرزیات تـشویق کـړئ اوهغـه زده کوونکي چې په رنګه کولوکې یې زیات رنګونه کارولي وي. ډېر زیات وهڅوي اوتشویق یې کړئ.

## اووم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده** ( **یو درسي ساعت**)

**د آرت او هنر مضمون**:

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د جشنونو او ملي لوبو ذهني نقاشي**. | |
| ۲-د زده کـــــــړې (پـــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>**۱-** د خلکو له فکلور، دودونو او رواجونو سره په ملي جشنونو او ملي لوبوکې د زده کوونکو بلدېدل.<br>**۲-** له ملي جشنونو او لوبو سره د زده کوونکو علاقه مندي.<br>**۳-** د ذهني نقاشۍ لپاره د ملي ځانګړو موضوعګانو د انځورولو د ارزښت درک کول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | عملي،پوښتنې او ځوابونه، توضیحي، کتنې. | |
| ۴- د زده کـــــــړې د اړتیاوړ وسایل | آبي رنګ، مويک، پنسل، پنسل پاک، کاک کاغذ، د اوبو لوښي. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه**:<br>لـه زده کوونکـو سـره روغبـړ، د لوسـت پـه هکلـه پوښـتنې او ځوابونـه او د لوست د تصویرونو دقیقه کتنه. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول**:<br>په جشنونو او ملي لوبوکې موکوم شیان په فکرکې ګرځي اوکومه برخه مو د انځورولو لپاره زیاته خوښیږي؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
|---|---|
| ۱- ښوونکي دې د ګران هېواد د خلکو دودونو او رواجونو په هکله، په ځانګړې توګه د ملي جشنونو او ملي لوبو په اړه توضیحات ورکړي، ترڅو دوی د ذهني انځورګري لپاره وهڅول شي.<br>۲- ښوونکي دې د مختلفو موضوعګانو د ذهني نقاشی د رسمولو په برخه کې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.<br>۳- ذهني نقاشي وارزوي او له ځان سره یې نوټ کړي. | ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي توضیحاتو ته پوره پاملرنه وکړي.<br>۲- د ذهني نقاشیو له پنسلي تکمیل وروسته هغه رنګه کړي.<br>۳- په ډلییزه بڼه سره وغږیږي او پایلې یې له نورو سره شریکې کړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دطبیعت دنقاشۍ له تجربې وروسته ( له طبیعت څخه منظره) له زده کوونکوسره مرسته وکړئ، ترڅوذهني تصویرونه وکاږي، په دې لوست کې زده کوونکي له جشنونواوملي لوبوسره بلدیږي. او د موضوع انتخاب د زده کوونکو په خوښه او د ښوونکي په تائیدتاکل کیږي. ښوونکی کولی شي چې له زده کوونکوڅخه دملي جشنونوپه هکله پوښتنې وکړي چې کوم جشن دوی ته په زړه پورې دی. وروسته دې دیوه جشن دانځورولو لپاره سره یوه خوله شي. د دې جشن په اړه دې زده کوونکي لومړی سره وغږیږي اوبیادې له دوی وغواړي چې ددې جشن یوه په زړه پورې برخه انځورکړي. کېدای شي چې دافعالیت په ملي لوبوکې هم سرته ورسوي. که زده کوونکي له ملي لوبوسره مینه لري، نوکولی شي چې دهغې په اړه سره وغږیږي اوله هغې څخه یوه څنډه انځور کړي اوپه رنګه کولویې لاس پوري کړي. ددې دواړوفعالیتولپاره یوازې لس دقیقې کافي دي او دساعت پاتې برخه دانځورولولپاره ځانکړې شي. دساعت په اخیرکې دې انځورونه ننداړې ته کېښودل شي، ترڅودوی دیوبل انځورونه وګوري. لومړی ټول زده کوونکي وهڅوي او بیا د هغو انځورونو په اړوند چې ننداړې ته وړاندې شوي دي، خپلې نظر یې وړاندې کړي. هغه زده کوونکي چې مهمې صحنې یې انځورکړي وي، بایدزیات وهڅول شي. دکاغذدصفحې ډکول له مختلفو اجزاوو، دموجوداتوحالت اوحرکت، له زیاتو رنګونو ګټه اخیستنه او درنګونوپه هم غږۍ باندې ټینګاروکړي اوزده کوونکي بایدوهڅول شي.

# اتم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرليکونه | د مطلبونو بيان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **له غونجو شويو (جينګړو) کاغذو څخه د حجمونو جوړېدل.** | |
| **۲-د زده کړې ( پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې)** | له زده کوونکو څخه هيله کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- له غونجو شويو کاغذو څخه د حجمونو له جوړولو سره بلدشي.<br>۲- د حجمونو د جوړولو له طريقې سره بلدشي.<br>۳- د حجمونو د جوړولو د ارزښت درک کول. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | عملي،پوښتنې او ځوابونه، توضيحي، کتنې. | |
| **۴- د زده کړې د اړتياوړ وسايل** | باطله کاغذونه، رنګه باطله کاغذونه، بياتي، سکاشتيپ، سلښت نري لرګي، غمي، خته پانې. | |
| **۵- د ارزونې ډول** | ځاني کتنه، د ستاينې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه، ډېرښه، ښه، منځنی او ضعيف. | |
| **۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه** | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره روغبړ، د نوي لوست په هکله پوښتنې او ځوابونه او د عملي کار پيل کول. | وخت ۵ دقيقې |
| | **د انګيزې رامنځته کول:**<br>پوښتنه له باطله شيانو څخه کومې ګټې پورته کولی شئ؟ | ۵ دقيقې |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|
| ۱- زده کوونکو ته لازمه ده چې هغه څه چې د دې لوست لپاره پکاریږي، له ځان راوړي.<br>۲- د ښوونکي د توضیحاتو له مخې په عملي بڼه کار پیل کړي.<br>۳- د حجم تر جوړیدو وروسته هغه ننداریې ته وړاندې کړي. | ۱- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي، کوم شیان چې د دې لوست لپاره پکاریږي، له ځان سره راوړي.<br>۲- ښوونکی دې زده کوونکي د حجم په ټاکلو کې آزادپریږدي چې دوی پخپله خوښه یوشي د جوړولو لپاره وټاکي او یوازې دې دوی ته توضیحات ورکړي.<br>۳- د لوست په پای کې دې د دوی کارونه وارزوي او له ځان سره دې یې نوټ کړئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات:**

دا لوست له غونجو شویوکاغذوڅخه دحجمونوجوړول ورزده کوي. زده کوونکي زده کوي چې له باطله شیانوڅخه ښکلي آثارپه وجود راوړي، کولی شو، چې له باطله کاغذوڅخه زیات کارونه سرته ورسوو. یوه ډېره ساده لاره، له هغې څخه په ګټې اخیستنې د خپل خوښې حجم په جوړېدوکې، غونج شوي کاغذونه دي. باطله کاغذونه د فشارورکولوپه صورت کې غونجېږي اوهغه ته په ځیروګورئ او بلده بڼه پکې ولټوئ، بیا د نوروشیانوداتصال په صورت کې ترې د خپلې خوښې شی جوړکړي، دا لوست هم تصویر لټولو اوپیداکولو لپاره دی لکه په انځورګري کې چې په ټکوکې تصویرونه وو، داهم دهغې په شان ده. خو یوازې فرق یې دادی چې په هغې کې انځورونه اوپه دې کې حجمونه جوړېږي. زده کوونکي کولی شي چې له طبیعي موادو، لکه: ( شاخونه، پاڼې، دالوتونکوبڼکې ) اومصنوعي موادو، لکه: (مرۍ، غمي اوتنې ) څخه د حجمونو په جزیاتوکې ګټه واخلي اوخپل کار دې تکمیل کړي. سربېره پردې له مختلفورنګونو څخه په استفادې سره دې هغه رنګه کړي اویا دې رنګه کاغذ په مناسبوځایوکې وکاروي چې تکمیل شي.

که چېرې کوم زده کوونکی دڅوغونجو شویوکاغذوپه نښلولوسره ښکلي حجم جوړ کړي، هغه په زیاته اندازه وهڅوئ اوکه کوم زده کوونکي چې په نوښتګره توګه خپل حجم تکمیل کړي، هغه هم وهڅوئ:

## نهم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| د مطلبونو بیان | | سرلیکونه |
|---|---|---|
| **له اسلامي هنر سره بلدتیا.** | | ۱- د لوست موضوع |
| له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د اسلامي هنرونو له ځانگړتیاوو سره بلدشي.<br>۲- د اسلامي هنرونو د شهکاریو له طریقو سره بلدشي.<br>۳- د اسلامي هنري آثارو د ښکلا د لارو درک کول. | | ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) |
| کتنې ،پوښتنې او ځوابونه، توضیحي،عملي، د کاریوالی. | | ۳- د لوست ډولونه |
| د درسي کتاب تصویرونه، دی ته ورته نور تصویرونه، تصویري چارتونه. | | ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل |
| ځاني کتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه، تحریري او تقریري، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف. | | ۵- د ارزونې ډول |
| **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره روغبړ، د تېر لوست او نوي لوست په هکله پوښتنې. | وخت ۵ دقیقې | ۶- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه |
| **د انگیزې رامنځته کول:**<br>د اسلامي هنرونو د شهکاریو په هکله موخه اوریدلی دي؟ | ۵ دقیقې | |

| ۷- د ښوونکي د تدريس فعاليتونه ( د مفاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه |
|---|---|
| ۱- ښوونکي مکلفيت لري چې د ګران افغانستان او اسلامي نړۍ د هنرونو په هکله توضيحات ورکړي.<br>۲- مهمې جملې د ټولګي په توره دړه وليکي.<br>۳- د زده کړې فعاليتونه و ارزوي او له ځان سره يې نوټ کړي. | ۱- د ښوونکي توضيحاتوته دقيق غوږ ونيسي.<br>۲- مهمې جملې پخپلو کتابچوکې وليکي.<br>۳- د اسلامي هنرونو په هکله په خپلو ډلوکې سره وغږيږي او پايله يې نوروته بيان کړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

په نهم لوست کې د اسلامي هنراصلي ځانګړتياوې بيان شوي دي. په دې لوست کې د اسلامي هېوادو هنري آثارو د شکل نيولوځرنګوالی، معنااومفهوم په کلي ډول ليکل شوي دي. داسلامي هېوادونودآثارونمونې په دې لوست کې وړاندې شوېدي چې مشترک ټکي يې په ډېره ښه توګه څرګند شوي دي.

په دې اساس د هنر تاريخ د هر هېواد د تاريخ مهم جز دي چې د تاريخ په اوږدوکې د فکري تحولاتو او د اساسي بدلونونو زمينه برابروي. د تاريخ په اوږدوکې د لويو ملتونو او قومونو چې د نورو د ځمکو نيولو نيت يې درلود، د خپل تاثير او اغيزې لاندې راوستلي وو چې د وژلو او ورانولو پر ځای يې د ودانولو او د هنري آثارو ايجادولو په لور بدلون ورکړ. د فرهنګ او هنر ساتل او د لرغونتيا او ارزښت سره بلدتيا د هنري آثارو د پيژندلو، ساتلو، توليدولو د ملتونو د انکشاف ستر عامل دې. په دې وجه د نړۍ او د افغانستان د هنر تاريخ په دې تحصيلي دوره کې چې د ځوانانو شخصيتونه شکل نيسي، ستر ارزښت لري. نوي ځوانان چې په خپل تاريخ، فرهنګ او هنر وپوهيږي، د نورو د فرهنګي يرغلونو د تاثير لاندې نه واقع کېږي. نو ځکه د هنر تاريخ په دې دوره کې په پام کې نيول شوی دی، ترڅو زده کوونکي خپل هنري ميراثونه وپيژني او د هغې په ساتلوکې کوښښ وکړي.

## لسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده** ( یو درسي ساعت)

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له اسلامي ډیزاینونو څخه کاپي کول.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د اسلامي ډیزاینونو او د هغو د رنگونو له هم غږۍ سره بلدتیا.<br>۲- د ترس کاغذ په ارزښت پوهېدنه.<br>۳- د کاپي کولو د طریقې درک کول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | مشاهده، توضیحي، عملي، د کاریووالی. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | ترس روڼ یا شفاف کاغذ، پنسل، سکاشتیب، شنه رنگونه، مویک، د اوبو لوښی، د نقاشي تخته. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه، ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف. | |
| ۶- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>د لوست په اړه پوښتنې او ځوابونه او د اسلامي ډیزاینونو د ځانگړتیاوو په گوته کول. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انگیزې رامنځته کول:**<br>یو اسلامي ډیزاین څه ډول کاپي کوئ؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدريس فعاليتونه ( د مفاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه |
| --- | --- |
| ۱- د زده کوونکو کارونه په ټولګي کې ننداريې ته وړاندې کړئ.<br>۲- د ترس کاغذ په اصلي طرحه د چسپولو لاره زده کوونکو ته بيان کړئ.<br>۳- د کاپي کولو لاره زده کوونکو ته بيان کړئ.<br>۴- د کاپي د رنګه کولو په هکله معلومات ورکړئ. | ۱- د کاپي کولو وسيلې اماده کړئ.<br>۲- د نظروړ طرحه د ميز په سر او يا د نقاشۍ په تخته محکمه کړئ.<br>۳- د اصلي طرحې په اندزه ترس کاغذ پرې وچسپوئ چې محکم شي .<br>۴- هغه خطونه چې د ترس کاغذ لاندې روښانه معلوميږي، وباسئ ( لومړی عمومي خطونه وروسته جزييات)<br>۵- د ترس کاغذ له اصلي طرحې جلا کړئ او خطونه د ترس کاغذ په شا بيا وکاروئ او بل کاغذ ته يې ورنقل کړئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دا لوست د اسلامي خطونو اوډيزاينونو دکاپي کولوپه اړه دی. دا فعاليت دتصويرلټونې اوتصويرجوړونې سربېره دنقاشۍ په درسونوکې وړاندې شوی دی، ترڅوزده کوونکي له دې طرحوسره بلدشي او د هغې په کاپي کولودعنصرونو د ترکيب؟ يا د هنري تصويرونوپه الفبا پوه شي. نوځکه په دې فعاليت کې يوازې له هنري اثرڅخه تقليد مطرح نه دی، بلکې زده کوونکي دخطونو ترمنځ هم غږي، شکلونه، رنګونه، دښکلي تناسبونوپه وجود راوړلواو دمختلفوريتمونورامنځ ته کول زده کوي. د ښوونکی ټينګارپه دې موضوعګانوباندې د دې سبب ګرځي چې زده کوونکي يوازې په يوه کاپي پسې ونه ګرځي،بلکې دکارکولوپه وخت کې، دعنصرونوترمنځ اړيکي دې وڅيړي. زده کوونکي کولی شي دهرې برخې په رسمولودخطونواوشکلونوترمنځ اړيکې وڅيړي او په هکله يې خبرې اترې وکړي. درنګه کولوپه وخت کې درنګونوتاثيرونواو دکارپه حالت کې بدلون ته پاملرنه وکړي او دهغې په هکله دې سره وغږيږي. هغه نمونه چې دکارلپاره ټاکئ بايد د مشهورو استادانوله اثاروڅخه وي ترڅوزده کوونکي دکارکولوپه وخت کې ډېرشيان زده کړي.

# یوولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده** ( **یو درسي ساعت**)

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د لیک د ښکلا له هنر سره بلدتیا.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د خط له ښکلاوو سره بلد شي.<br>۲- د خط له ښکلاو سره علاقه مندي.<br>۳- د یوه ښکلي ط درک کول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | کتنې ، توضیحي ، عملي، د کاریوالی | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | د رنګ مشوانۍ، د کرکي قلم، ښوی کاغذ، په مشوانۍ کې لیقه. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>د یو ښکلي حسن خط کتل او خبرې اترې، د حسن خط نزاکتونو او ظرافتونو ته پاملرنه وکړئ. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>څو ډوله خطونه پیژني او کوم یو د لیکلو لپاره ټاکئ؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
|---|---|
| ۱- د خط او د هغه د ترکیبونو په هکله پوښتنې وکړئ.<br>۲- ښوونکي دې د خط او د هغه د ترکیبونو په هکله معلومات ورکړئ.<br>۳- د تورو د ترکیبونو په هکله توضیحات ورکړئ.<br>۴- د زده کوونکو خطونه ارزیابي کړئ او پایله یې نوټ کړئ. | ۱- د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب ورکړي.<br>۲- د ښوونکي خبرې او توضیحات په غور واورئ.<br>۳- په کرکي قلم او سیايي یو خط مشق کړئ.<br>۴- زده کوونکي دې په ټولګي کې خپل مشقونه ننداري ته وړاندې کړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

لیک یا حسن خط یو وتلي هنر دې چې مختلف ډولونه لري چې ډېر مهم یې نسخ او نستعلیق دي. د نسخ خط له اسلام څخه وروسته د کوفي خط څخه په وجود راغلي دي چې په اسلامي هېوادو کې قرآنکریمونه، کتابونه، مجلې، ورځپاڼې او داسې نور په همدې خط لیکل کېږي. چې ډېره ښکلې بڼه لري.
د نستعلیق خط د نسخ له خط څخه منځ ته راغلی دی چې ځینې باریکي او نزاکتونه پکې په ښکلي بڼه مراعات شویدي او د وخت په تېریدو سره یې خطا طانو ښکلا ته نوره پاملرنه هم کړي ده چې دولتي اداري خپلې ټولې لیکنې په دې خط باندې تر سره کوي او ډېر معمول دي، نو ځکه یې هر څوک ښکلا ته پاملرنه کوي.

## دولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده** ( یو درسي ساعت)

**مضمون آرت او هنر**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د بسم الله الرحمن الرحیم کاپي کول.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د بسم الله الرحمن الرحیم له کاپي کولو سره بلدتیا.<br>۲- د تورو د فاصلو درک کول.<br>۳- د حسن خط له کاپي کولو سره علاقه مندي ښودل. | |
| ۳- د لوست ډولونه | کتنې، پوښتنې او ځوابونه، توضیحي. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | کاغذ کاک، د ترس کاغذ رون (شفاف) پنسل، سکاشتېب، رنګ، مویک، د اوبو لوښی، د نقاشۍ تخته. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف) عملي، کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>کاپي له تکمیلیدو وروسته هغه اصلي کاغذته ورنقل او رنګه یې کړئ. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>څنګه کولی شئ چې بسم الله الرحمن الرحیم کاپي کړي؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدريس فعاليتونه ( د مفاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه |
| --- | --- |
| ۱- ښوونکي مکلفيت لري چې د کاپي کولو په هکله توضيحات ورکړي.<br>۲- د کاپي کولو په هکله پوښتنې طرحه کړئ.<br>۳- د کاپي د رنګه کولو په هکله توضيحات ورکړئ.<br>۴- خپل زده کوونکي د کاپي کولو په وخت کې وارزوئ. | ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي خبرې په غور واوري.<br>۲- پوښتنوته دې ځوابونه ووايي.<br>۳- په ډېر ځير او دقت دې کار پيل کړي.<br>۴- له تکميل وروسته په رنګونو ښکلا ورکړئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

د زده کړې د ټينګښت او د اسلامي هنرونو د پيژندنې لپاره د لسم لوست چې د اسلامي ډيزاينونو کاپي کول دي، دولسم لوست د بسم الله الرحمن الرحيم کاپي کول، څوارلسم لوست د يوې اسلامي ودانۍ جوړول ( پُل) ۱۸ او ۱۲ لوستونه د اسلامي هنرونو د نمونو جوړولو لپاره ځانګړي شويدي.

له دې لوستونو څخه يوازې په لسم لوست کې توضيحات ورکړل شويدي چې د ټولو لپاره بسنه کوي.

## دیارلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده** ( **یو درسي ساعت**)

**د آرت او هنر مضمون**:

<table>
<tr><th>سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو بیان</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">له اسلامي معماري سره بلدتیا.</td></tr>
<tr><td>۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې)</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- (له اسلام وروسته) له اسلامي معماري سره د زده کوونکو بلدتیا.<br>۲- د اسلامي معماریو له ورته والي سره علاقه مندي.<br>۳- په اسلامي هېوادونو کې د اسلامي معماریو د هم غږګي درک کول.</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست ډولونه</td><td colspan="2">توضیحي ، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه.</td></tr>
<tr><td>۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل</td><td colspan="2">د اسلامي معماریو تصویرونه د ګنبدو او منارونو کتنه.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې ډول</td><td colspan="2">تحریري او تقریري، د ستاینې درجې، د عمل کولو ارزونه، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>د زده کوونکو د حال پوښتنه:<br>متن ولولي او په خپل ذهن کې بې وساتئ او فکر پرې وکړي چې په اسلامي هېوادو کې معماري څومره ورته والی او څومره توپیرونه لري.</td><td>وخت ۵ دقیقې</td></tr>
<tr><td>د انګیزې رامنځته کول:<br>په اسلامي هېوادو کې د معماریو ورته والی په ګوته کړئ؟</td><td>۵ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
|---|---|
| ۱- ښوونکي دې د اسلامي معماریو په هکله توضیحات ورکړئ.<br>۲- د اسلامي معماریو په هکله پوښتنې طرحه کړئ.؛<br>۳- د اسلامي نړۍ د معماریو ورته والی دوی ته بیان کړئ.<br>۴- دوی وارزوئ او پایلې یې ولیکئ. | ۱- د ښوونکي توضیحاتوته دې په غور او دقت غوږ ونیسي.<br>۲- پوښتنو ته دې سم ځواب ووایي.<br>۳- د اسلامي نړۍ د معماریو ورته والی دې نوټ کړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

له حسن خط وروسته ډېرمهم هنرمعماري ده، په ځانګړي ډول دلویواوښکلوجوماتونوجوړېدل، چې لمونځ کوونکي دالله(ج) عبادت هلته کوي. دمعماري مهمې اجزاوې، لکه: منارې، ګنبدې اومحرابونوعکسونه په دې لوست کې معرفي شوي دي، ترڅو په زده کوونکو کې د علاقې او مينې د رامنځ ته کولو لامل شي. ستاسې د لا ډېرو معلوماتو لپاره ماخذونو ته مراجعه وکړئ.

## خوارلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده** ( یو درسي ساعت)

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرليکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د یوې اسلامي ودانۍ جوړیدل (پُل)** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د یوې اسلامي ودانۍ له جوړولو سره بلدتیا.<br>۲- یو پُل د لاسي کار په توګه جوړ کړای شي.<br>۳- د هغې له وسیلو سره بلدشي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | پوښتنې او ځوابونه، کتنې. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | کاک کاغذ، بیاتې، سلښت، وړې ډبرې، دناجو پاڼې، د ونو نازک شاخونه. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني بیاکتنه، د ستاینې درجې،د عمل کولو د ارزونې لپاره، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف. | |
| ۲- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>زده کوونکي دې له کاغذڅخه د پله یو دیوال جوړ کړي او بل دیوال له لومړي دیوال څخه کاپي او بیاتي کړي. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>له کومو طبیعي موادو څخه یو پُل جوړولی شئ؟ | ۵ دقیقې |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|
| ۱- د ښوونکي توضیحاتو ته په کلکه غوږ ونیسي.<br>۲- پوښتنوته سم ځوابونه ووایي.<br>۳- خپل کارونه په خپله وارزوي.<br>۴- د درسي کتاب د پله د تصویر مرحلې وګوري او یو پُل جوړ کړي.<br>۵- لـه جوړېـدو وروسـته یـې پـه مناسـبو رنګونـو رنګه کړي. | ۱- ښـوونکي مکلفیـت لـري چـې د پُـل جـوړول چـې د درسي کتاب په تصویرو کې لېدل کېږي، شرحه کړي.<br>۲- له زده کوونکو څخه پوښتنې طرحه کړي.<br>۳- دوی ارزیابي کړي او له ځان سره یې نوټ کړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دا یوعملي لوست دی او له اسلامي ودانیوسره بلدېدل دي. د دې فعالیت دسـرته رسـولویوه اونـۍ مخکـې زده کوونکوته دنده وسپارئ، چې په خپله شاوخواکې مختلف پلونـه پـه ځیرسـره وګـوري. پخـواني اونـوي پلونـه دې سره پرتله کړي. دپلونودمختلفوعکـسونو لېـدل هـم د دې فعالیـت دسـرته رسـولولپاره مناسـب کـاردی. کـه زده کوونکي غواړي چې یو پُل جوړکړي، نولومړی دې د پُل دوه دویوالونه په کاغذکې رسم کړي اوبیـادې هغـه پـه یوه مقواکاغذ په ولاړي، لکه: دیوال داسې ونښلوي، سرپوښ دې هـم پـرې ونـښلوي ، ښـکلادې ورکـړي، هـم کولی شي چې شاوخوا یې په مناسبوځایوکې له رنګه کاغذو، وړوډبرو او داسې نوروپه نښلولوخپل لاسـي کارتـه ښکلا وروبخښي.

## پنځلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له اسلامي هنرونو سره بلدتیا.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- له اسلامي هنرونو سره بلدشي.<br>۲- له خطونو او ډیزاینونو سره بلدېدل.<br>۳- د اسلامي ډیزاینونو درک کول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، مباحثه، عملي کار. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | د اسلامي ډیزاینونو تصویرونه، هغه تصویرونه چې په لرګي او یا دیوالونو کې کارول شوي دي، کتنې. | |
| ۵- د ارزونې ډول | تحریري ،تقریري او د ستاینې درجې، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>زده کوونکي دې د لوست مهم ټکي نوټ کړي، زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې سره وغږېږي او پایلې دې له نورو سره شریکې کړي. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>د لوست په هکله دې پوښتنې طرحه شي او له زده کوونکو څخه دې وپوښتل شي چې آیا د اسلامي هنرونو په ځانګړتیاوو پوهیږي؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۱- د اسلامي هنرونو په هکله دې پوښتنې طرحه کړي.<br>۲- ښوونکي بايد د لوست د موضوع په هکله زده کوونکو ته توضیحات ورکړي.<br>۳- د لوست په پای کې دې ارزونه صورت ونیسي. | ۱- د ښوونکي خبرې په غور او دقت واوري او مهم ځایونه په خپلو کتابچو کې نوټ کړي.<br>۲- د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب ورکړي.<br>۳- ځاني ارزونه وکړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دا لوست له اسلامي هنرونو سره د بلدتیا په اړه ځانگړی شوي دی او لاسي صنایع په روښانه ډول بیانوي. پنځلسم لوست موږ په افغانستان کې له اسلامي هنرونوسره بلد وي. د دې آثاروتولید او دوام دهرهېواد ملي ځانگړتیاووته پراختیاورکوي. د مثال په توگه، د افغانستان په مختلفوسیموکې لاسي صنایع په بېلابېلوطرحو، ډیزاینونواو رنگونو چې د هرې سیمې استازي توب کوي، جوړېږي چې د افغاني هنرونو مجموعه په داخل او خارج کې نندارې ته وړاندې کېږي.

## شپاړلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له خټو څخه د قلمداني جوړول.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- زده کوونکي د قلمداني له جوړولو سره بلدشي.<br>۲- د هغې د جوړولو په لارو وپوهېږي.<br>۳- د ختینولوښو له جوړولو سره علاقه مندي پیدا کړي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | پوښتنې او ځوابونه، توضیحي، کتنې، عملي کار. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | د رس خټه، مواد لیر یا پلاستیکي چاړه، د اوبو لوښی، شین رنګ مویک، پنسل. | |
| ۵- د ارزونې ډول | عملي، د ستاینې درجې، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>زده کوونکي دې خټه تیاره کړي او د قلمداني په جوړولو دې کار پیل کړي. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>آیا تراوسه مو له ختې څخه کوم حجم جوړ کړي دئ؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۱- ښوونکي ملکفیت لري چې د لوست په هکله زده کوونکو ته توضیحات ورکړئ.<br>۲- پوښتنې طرحه کړئ.<br>۳- د سوالو ځوابونه وارزوئ او پایله یې نوټ کړئ | ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي توضیحاتو ته دقیق غوږ ونیسي او مهمې جملې دې نوټ کړي.<br>۲- پوښتنو ته دې ځواب ووایي.<br>۳- خټې ته دې دایروي شکل ورکړي.<br>۴- له خټې څخه دې لولې یا بوړکي جوړ کړي.<br>۵- بوړ کي دې په دایره ونښلوي.<br>۶- د اوبو په مرسته دې هوار یا لشم کړي.<br>۷- د چاودیدو په صورت کې دې د ګوتو په فشار سره ونښلوي.<br>۸- جوړه شوې قلمداني په پلاستیکي کڅوړه کې وپېچئ.<br>۹- له وچېدو وروسته یې ډیزاین او رنګه کړئ.<br>۱۰- خپل لاسي کار په ټولګي کې ننداري ته وړاندې کړئ پرې وغږیږئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

عملي فعالیت د خټینو حجمونو په جوړولو پورې اړه لري. زده کوونکو د اووم ټولګي په دولسم لوست کې دختو له جوړولو سره بلدشوي دي او په څوارلسم لوست کې یې د یوه خټین لوښي د جوړولو تجربه تر لاسه کړیده. په دې لوست کې د یوې قلمدانې جوړولو او له رس ختي څخه د مختلفو حجمونو جوړول زده کوي. په دې لوست کې هغه حجمونه چې د لولو او بوړکیو په واسطه جوړیږي. زده کوونکي د ختو لولو یا بړکیو لاره زده کوي. د ختو د بوړکیو جوړول او یو دبل په سر کیښودل هغه دودیز ډول دی چې په لاس سرته رسیږي. لومړی په ختو کې د قلمداني په مطابق یوه دایره جوړیږي او بیا لومړی بوړکی د هغې په شاوخوا باندې د ګوتو د فشار په واسطه نښلوي، وروسته د هغې په سر بل او د بل په سر بل تر هغه اندازې پورې نښلوي چې ارتفاع یې د نیم قلم په اندازه شي. د هغې د دیوالو د محکمولو لپاره باید لږ ه اوبلنه خړه یا خړوبی جوړشي او د بوړکیو پر مخ ومښل شي چې د بوړکیو خطونه ورک شي، که ورک نه شول، نو د پلاستیکي چاړې یا مودلیر په واسطه یې صاف یا لشم کړئ، په هغې کې ښکلي ډیزاینونه او نقشونه انځور کړئ. کله چې حجم وچ شئ، بیا یې پوخ کړئ او په ښکلو رنګونو رنګه کړئ. زده کوونکي باید د قلم داني جوړول زده کړي، ترڅو وپوهېږي هغه شی چې جوړ شویدي، جوړونکي هم لري او دوی هم کولی شي دا وسیلې جوړې کړي. باید د لوښو خواته په دقت وګوري چې په کومو لارو جوړ شوي دي او هڅه وکړي چې هغې ته ورته لوښي جوړ کړي. له هغو لوښو څخه چې تاسې یې پخپله جوړوئ یا یې په چا خرڅ او یا خپله ترې ګټه واخلئ.

# اوولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له میناتوري سره بلدتیا** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- له میناتوري سره د زده کوونکو بلدتیا.<br>۲- له میناتوري سره د زده کوونکو علاقه مندي.<br>۳- د میناتور د هنري ارزښت درک کول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، ډلییزې مباحثې، خبرې اترې. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | د درسي کتاب تصویرونه، د میناتوري کتابونه، د میناتوري تابلوګانې. | |
| ۵- د ارزونې ډول | تحریري او تقریري پوښتنې، د ستاینې درجې، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>زده کوونکي دې د ښوونکي توضیحاتوته په دقیق ډول غوږ ونیسي او مهم جملې دې نوټ کړي. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>پوښتنې دې طرحه شي د مثال په توګه: د لومړنیو مسلمانانو نقاشي څه ډول وې؟ | ۵ دقیقې |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|
| ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي خبرې په غور او دقت واوري او مهمې جملې دې نوټ کړي.<br>۲- د لوست تصویرونه په غوره سره وګورئ.<br>۳- د میناتور نزاکتونو او ظرافتونو ته په خپل ذهن کې ځای ورکړئ.<br>۴- د میناتور رنګونو ته دې ځیر شي.<br>۵- د میناتوري هنر د هنرمندانو کارونه دې وګوري او خپل ذهن ته یې وسپاري.<br>۶- نړیوال میناتوریستان کوم کارونه سرته رسوي.<br>۷- د میناتور تناسبونو ته ځیر شي او خپل ذهن ته یې وسپارئ. | ۱- ښوونکي ملکفیت لري چې د میناتوري په هکله معلومات ورکړي.<br>۲- له زده کوونکي څخه د میناتوري په هکله پوښتنې وکړي.<br>۳- د ارزونې لپاره نورې پوښتنې هم طرحه کړئ او ځان سره یې نوټ کړئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دغه لوست له میناتورۍ سره د بلدتیا په منظورځانګړی شوی دی. دنقاشۍ لومړنۍ نمونې دعلمي اوادبي کتابونو د تصویرونو لپاره شویدي. دمیناتورنقاشي خپلې خاصې ځانګړتیاوې لري. په دې نقاشۍ کې دفضاء انسان، طبیعت اورنګونه په ذهني ډول انځوریږي.

لکه څرنګه چې د میناتور له نامه څخه معلومیږي، د ظریف او نازک په معنا ده. د دې سبک نقاشان د طبیعت شکلونه چې څه ډول له نږدې ویني، په همغه شکل یې د نزاکتونو او ظرایفو سره رسموي او د لري او نږدې ( پرسپکتیو) قوانین په خپلو نقاشیو کې نه مراعات کوي چې دا یو خاص سبک دي. د دې سبک هنرمندان په عمومي ډول نقره یي، لاجوردي او طلایي رنګونه پخپلو آثارو کې کاروي چې د هغې په واسطه ډیر ښه اثار رامنځته کوي.

# اتلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د قرآنکریم د رحیل جوړېدل.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د قرآنکریم د رحیل له جوړولو سره بلدشي.<br>۲- د قرآنکریم رحیل جوړ کړای شي.<br>۳- له لاسي کارونو سره د زده کوونکو مینه زیاته شي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | عملي، توضیحي، ډلییزې مباحثې،خبرې اترې . | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | ډبل کاغذ، پنسل، بیاتي د پریکولو چاړه( تیغ برش) | |
| ۵- د ارزونې ډول | عملي کار ،کتنې، د ستاینې درجې، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>زده کوونکي د درسي کتاب له مخې د رحیل مرحلې په ځیر کتیا سره عملي او کار پیل کوي. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>د پوښتنې طرحه کول د مثال په توګه: له کومو موادو څخه رحیل جوړوئ؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
|---|---|
| ۱- ښوونکي دې دلوست په هکله توضیحات ورکړي.<br>۲- د لوست په مهمو ټکو دې ټینګاروشي.<br>۳- د رحیل په جوړولو کې دې زده کوونکو ته لازمې مشورې ورکړي.<br>۴- د زده کوونکو کار په ځیرسره وګورئ او هغه وارزوئ. | ۱- زده کوونکي د ښوونکو توضیحاتو ته دقیق غوږ نیسي.<br>۲- مهمې ټکي نوټ کوي.<br>۳- لومړي مرحله په ډبل کاغذ کې انځور وي.<br>۴- وروسته دویمه او دریمه مرحله په ډبل کاغذ کې انځور وي.<br>۵- له مینځ څخه یې تر نیمایي پورې پرې کوي.<br>۶- دویمه مرحله په دریمه مرحله کې وردننه کوي.<br>۷- له جوړېدو وروسته هغه کې ښکلي ډیزاینونه انځور وي.<br>۸- ډیزاینونه رنګه کوي.<br>۹- د رنګو تر وچېدو وروسته قرآنکریم پکې ږدي او تلاوت کوي یې. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې زده کوونکي د قرانکریم رحل جوړېدل تجربه کوي، چې یو بل عملي فعالیت دې، چې له اسلامي هنرونو سره زده کوونکي بلدشي. دالوست هم پورته موخې سرته رسوي اوهم زده کوونکي د ژوندانه د چاپیریال پلټنې ته هڅوي، ترڅووویني چې کوم شیان په خپل لاس جوړه ولی شي. دوی باید وهڅوو چې سربېره پردې نوي مفکورې دقرانکریم درحل په جوړولوکې په کاریوسي او په رنګه کولو او ښکلاکې یې ابتکاروکړي

# نولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له افغاني هنرمندانو سره بلدتیا.** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د افغانستان له هنرمندانو سره بلدېدل.<br>۲- د دوی د هنري آثارو په ارزښت پوهېدل.<br>۳- د دوی له آثارو سره علاقه پیدا کول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، سوال او ځواب. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | د افغاني هنرمندانو آثار. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني بیاکتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف. | |
| ۶- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>د افغاني هنرمندانو په هکله دې په خپلو ډلو کې سره وغږېږي او پایلې دې له نورو ډلوسره شریکې کړي. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انگیزې رامنځته کول:**<br>د پوښتنې طرحه کول د مثال په توگه د استاد مشعل او استاد وکیلي پوپلزایي په هکله کوم معلومات لرئ؟ | ۵ دقیقې |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|
| ۱- د ښوونکي معلوماتو ته غوږ ونیسي.<br>۲- مهم ځایونه نوټ کړي.<br>۳- د استاد مشعل او استاد پوپلزایي په اړه معلومات تر لاسه کړي.<br>۴- د ښوونکي خبروته تل پاملرنه وکړي. | ۱- ښوونکي مکلفیت لري چې د استاد مشعل او استاد وکیلي پوپلزایي په هکله معلومات ورکړي.<br>۲- لوست ته د زده کوونکو توجه جلب کړي.<br>۳- په ټولو هنري کارونو کې تشویق کول د لوست د زده کړې سبب گرځي، نو په دې وجه دوی باید ډېر وهڅول شي.<br>۴- د زده کوونکو د علاقه مندي په زیاتولو کې هلې ځلې وکړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

د هنرد تاریخ په برخه کې دوه افغاني هنرمندان استاد سعید مشعل اواستادعزیزالدین وکیلي پوپلزایي په دې لوست کې زده کوونکوته ورپېژندل شویدي.

استاد وکیل پوپلزایي په اوه قلمي خطاط باندې مشهور و. ده په دې هکله ډېر زده کوونکي روزلي دي او د خطونو د ښکلا په اړه یې کتابونه هم تالیف کړیدي او د خپلې زماني یو وتلی خطاط و، روح دې ښادوي.

استاد مشعل هم د میناتوري په هنر کې د استاد کمال الدین بهزاد له سبک څخه پیروي کړېده او په دې هنر کې یې د هرات په لرغونی ښار کي ډېر زده کوونکي روزلي دي، روح دې ښاد وي.

## شلم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له افغاني هنرونو سره بلدتیا** | |
| ۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- له افغاني اصیلو هنرونو سره بلدشي.<br>۲- ځینې هنرونه نقاشي کړای شي.<br>۳- له افغاني هنرونو سره علاقه مندي پیداکړي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، سوال او ځواب، کتنې. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | د قالینو ډیزاینونه، د کاشي ډیزاینونه، کتنې، هغه نقاشي چې په لاسي کاروکې موجودې دي، د هغوی ډیزاینونه. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني ارزونه، د ستاینې درجې، ارتباطي مهارتونه، ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>زده کوونکي دې د قالینو، کاشي کاریو او د لاسي صنایعو نقاشي په غور وګوري او خپل ذهن ته دې وسپاري. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>د پوښتنې طرحه کول د مثال په توګه:<br>د لاسي صنایعو ډیزاینونو ته مو پاملرنه کړیده؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۱- ښوونکي مکلفیت لري چې د افغاني هنرمندانو په هکله توضیحات ورکړي.<br>۲- د افغاني هنر د اقتصادي ارزښت په اړه توضیحات ورکړي.<br>۳- د لاسي صنایعو فرهنګي او هنري اړخونو په هکله معلومات ورکړي. | ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي خبرې په سمه توګه واوري.<br>۲- مهمې جملې دې نوټ کړي.<br>۳- د لاسي صنایعو په هکله دې خپل معلومات زیات کړي.<br>۴- د افغانستان د بېلا بېلو سیمو د هنرمندانو په هکله دې معلومات پیدا کړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دا لوست له افغاني هنرونو سره پیژندګلوي ته ځانګړی شوی دی او لاسي صنایع په روښانه ډول بیانوي. شلم لوست موپه افغانستان کې له اسلامي هنرونوسره بلدتیا او د دې آثاروتولید او دوام دهرهېواد ملي ځانګړتیاووته پراختیاورکړېده، دمثال په توګه، دافغانستان په مختلفوسیموکې لاسي صنایع په بېلابېلوطرحو، ډیزاینونو او رنګونو چې د هرې سیمې نمایندګي کوي جوړېږي چې مجموعه یې دافغاني هنرځانګړتیاوې دي چې ننداري ته وړاندې کېږي

## د افغانستان د ملي موزيمونو سره بلدتيا

### د مزارشريف موزيم:

د مزارشريف موزيم اوږده مخينه او لرغونتيا لري. له هغه وخت څخه چې د حضرت علي کرم الله وجهه مقبرې ته پادشاه هانو سوغاتونه ورکول، د دې موزيم د جوړېدو سبب شو دا تحفې او هديې د روضې په يوه ځانګړې کوټه کې ساتل کېدې. د مزار شريف موزيم سربيره پر قيمتي ډاليو د مسکوکاتو او نه پيدا کيدونکو کتابونو په ځانګړې ډول د خطي نسخو کتابونه چې د هغو له ډلې څخه د قرآن عظيم الشان نسخې، د قرآنکريم ځينې تفسيرونه چې له زيات ارزښت څخه برخمن دي. په دې سربيره پخپله مبارکه روضه کې د معماري د هنر يو لرغونی سبک دی، چې په مبارکو آياتونو ښکلی شوی ده. دا مبارکه روضه يوه تاريخي لرغونې ودانۍ ده. په دې موزيمو سربيره زموږ په ګران هېواد کې شخصي موزيمونه هم شتون لري چې د نمونې په ډول د سلطاني موزيم د ياولو وړدی.

### د هرات موزيم:

په ۱۳۰۲ هـ.ش يا ۱۳۰۴ هـ. ش کال کې د هرات موزيم تاسيس شو او په۱۳۱۰ هـ .ش کال کې د هرات د ښار ښاروالۍ ته وسپارل شو او په ۱۳۱۲ هـ. ش کال د هرات د ښاروالی د مقام په امر د پارک هوټل ودانۍ ته ولېږدول شو. په هغه کې چې کوم آثار موجود و، هغه د خلکو نندارې ته ايښودل شوي و. اکثره آثار بې د ښاروالی له بودجې څخه اخيستل شوي دي، هغه آثار چې په هډه او بګرام کې د کيندنو په نتيجه کې لاس ته راغلي و، د کابل د موزيم لخوا د سوغات او ډالۍ په ډول په ۱۳۲۵ هـ .ش کال دهرات موزيم ته سپارل شوي دي.

### د ميمنې موزيم:

د ميمنې د ښار په يوه تاريخي غونډۍ کې د ناڅاپي کشفياتو په نتيجه کې د غوريانو د دورې مسي سکې په لاس راغلې چې په ۱۳۳۵ هـ.ش کال کې بې د ميمنې د موزيم د جوړېدو زمينه برابره کړه. ترڅو په هغې کې لرغونې آثار او شيان وساتل شي. د ميمنې د موزيم د مديرانو په هلو ځلو په کم وخت کې د ډېرو لرغونو او قديمي آثارو څخه برخمن شو. او ننداره بې په ۱۳۳۲ هـ .ش کال کې پيل شوه. دا نندارې دومره په زړه پورې وې چې دميمنې خلکو خپل قيمتي او تاريخي آثارد تحفې او ډالۍ په ډول دې موزيم ته ورکړل.

# د منابعو فهرست


۱- رهنماي تدريس نقاشي د ماشومانو او نوو ځوانانو لپاره غلام محي الدين شبنم غزنوي ۱۳۸۰

۲- رهنماي درسي هنر د ابتدايي دورې د لومړي، دويم او دريمو ټولګيو د ښوونکو لپاره کوډ۵۳/۴/ ۱۳۸۵

۳- رهنماي مواد و اسلوب هاي طراحي و نقاشي رويين پاکبار.

۴- مباني هنري هاي تجسمي، فني و حرفوي کوډ ۲۱/ ۳۸۵، ۱۳۸٦

۵- اصول و مباني هنر هاي تجسمي، ډکتر محمد حسين حليمي.

٦- طرح و شکل (کلاس مقدماتي من درباهاوس)، يو هانس ريتن.

۷- طراحي فني و حرفه يي: کوډ ۳۵۹/۹۲، ۱۳۸٦

۸- د رنګ کتاب ايتن.

۹-کارګاه چاپ دستي ۱ فني و حرفه اي کوډ ۳۵۹/۹۲، ۱۳۸٦

۱۰- دايرة المعارف هنر: رويين پاکبار.

۱۱- تاريخ هنر: ارزښت کامبريچ، نشرات تهران، ۱۳۸۰

۱۲- د نړۍ د هنر تاريخ فني و حرفه اي کوډ ۴۰/ ۳۵۸و ۷/ ۴۷۰، ۱۳۸٦

۱۳- سيرهنر در تاريخ ۱، د پوهنځي مخکې، کوډ ۵۹۴/۳، ۱۳۸٦

۱۴- افغانستان ( د مقالو مجموعه) ژباړه هوشنګ اعلم و مرتضی اسعدي.

۱۵- فشرده تاريخ افغانستان، فاروق انصاري د کابل دمطالعاتو مرکز ۱۳۸٦

۱٦- تاريخ مختصر افغانستان، عبدالحي حبيبي.

۱۷- تاريخ خط و نوشته هاي کهن افغانستان، عبدالحي حبيبي.

۱۸ موزيم پېژندنه اوپه افغانستان کې دموزيمونوتګ لاره داتنوګرافي اولرغون پېژندنې ډيپارټمنت د اجتماعي علومو پوهنځی د کابل پوهنتون استاد محمدرسول باوري.۱۳۷۵